"لن يفلح قوم ولوا امرهم امراة" [۱]
هېڅکله به هغه ملت فلاح ونه مومي چې امارت او سیاسي واکمني يې ښځې ته وسپارلی شي.
دغه نبوي مرفوع متصل حديث دجليل القدر صحابي ابوبکره رضي الله عنه په سند داحاديثو هغه کتاب يعنې صحيح بخاري په کتاب المغازي کې روايت کړی دی چې له قرآن کريم څخه وروسته داسلامي امت دعلماوو په اجماع او اتفاق سره اصح الکتب دی. نو داسلام اساسات خود مسعوده جلال ددعوی نفې کوي. نه پوهېږو چې نوموړې دمسلمانانو دامامت کبری لپاره دځان کانديدولو په شرعي جواز کې څه دليل لري. پداسې حال کې چې په اسلامي شريعت کې خو دښځې امامت صغری هم جواز نه لري، له همدې کبله داسلام په تاريخ کې له پيل څخه تر اوسه پورې، بلکې په ګردو سماوي او الهي اديانو کې ذکر شوی نه دی چې ښځې دسړيو دلمانځه امامت کړی وي او نارينه و ته مخ ته شوی وي او په جماعت سره لمونځ يې ورکړی وي خو په پښتو کې يو متل دی وايي چې: ګنجي مې ليدلی نه ماغزه وتلي. دکرزي صيب حکومت دومره ليبرال دی چې له ګنجي توب سره يې ماغزه هم وتلي دي.

---

[۱] صحيح بخاري ج ۵ ص ۱۳۶ درياض چاپ کتاب المغازي ۸۲ باب.

په هر صورت کېدلی شي مسعوده جلال داخبره دعوا مو دغولولو لپاره کړې وي، او بیا کله چې دښاغلي کرزي صیب د ۱۲۹۵ وټونو په مقابل کې د ۱۷۱ وټونو په ورلو سره ناکامه شوه نو مسعوده جلال په ډېر ویاړ سره وویل:
"ما دافغانستان د ښځو له پاره یوه لاره پرانسته، ښځې دافغانستان په سیاسي ډګر کې پوره د حساب ورقوت دی".
په رښتیا هم له مسعوده جلال څخه دومره سپین سترګی اناهیتا راتب زادهم نه وه کړی. خو دغه مېرمن که داسې ویلی وای چې ماد امریکا او اروپایي جمهوري نظامونو، دچین او روس دښځو لپاره یوه لاره پرانسته چې هغوی باید دواکر بش پوټین او ژان شیراك په مقابل کې ځان کاندید کړي معقوله به وه نه دافغانستان دښځو لپاره، ځکه چې دافغان ملت ته په مجموع کې په پنځیزه توګه ننګ او غیرت ودیعت کړای شوی دی او که احیانا دبهرني خج په نتیجه کې پرې تحمیل هم کړای شي نو پایله به یې همداسې وي لکه دمسعوده جلال چې حتی په شوری کې دوه سوه دوه شپېتو موجودو ګردوښځو هم ووټ ورته ورنه کړ چې ددې لپاره دخجالت خبره ده. او نورو افغاني مېرمنو ته دعبرت اخیستلو ده.
په اوسني سیاسي لبرالیزم کې په افغانستان کې کابل ته دنړیوالو معلوم الحاله جاسوسي شبکو راتګ او ډېره کېدل دپاملرنې وړ خبره ده. او دغه ځینې جاسوسي ادارې دهغو سیالو

حکومتونو دي چې ښکېلاکي پنځ او Stragal لري، او هغه دی دروس C.G.B دبرتانیه Intelligence Service انیټلیجنټ سرویس، دهندوستان RA راد فرانسي S.D.E.C.E یعنې دبهرنیو اطلاعاتي اسنادو سرویس، داسرائیلو موساد، لکه چې دروان کال دجون په میاشت کې دپاکستان او صاف ورځپاڼې لیکلي دي چې دیهودو دجاسوسي سازمان موساد لس تنه غړي دپاکستان دتورخم له لارې کابل ته لاړل او په کابل کې په وي ای پي سیمه کې کور ورته نیولی شوی دی او په خپل فعالیت یې پیل کړی دی. دامریکا F.B.I ایف بی ایی – او C.I.A سي ای اې خو لاپخوا راغلي دي او افغانسان خپله مفتوحه مستعمره ګڼي. اود غو ګردو جاسوسي سازمانونو دځینې انجیوګانو په مرسته دافغانستان په مختلفو ولایاتو کې دخپلو حکومتونو دګټو په خاطر دورسپارل شویو ستراتېژیو سره سم خپلې دندې پیل کړي دي.

**اجتماعي لبرالیزم:** په افغانستان کې دلبرالیزم په پنځم پړاو کې له امریکایي یرغل څخه وروسته اجتماعي لبرالیزم هم پیل شوی دی. سینماوې فعالې شوي دي. دګډا، او نڅا مرکزونه، ساز او اواز په درزکي روان دی، دکابل په پوهنتون کې دساز او هنر زده کولو پوهنځي بېرته پرانیستل شو چې پنځوس تنه شاګردان به موسیقي پکې زده کوي.

شراب او شباب بشپړ ازاد دي، ډمان او ډمې درقص اوټنګ ټکور محفلونه جوړوي. او امريکايي ښکېلاک داروپايانو په ګډون تکل کوي چې زنا او لواطت په افغانستان کې هم جنايت او جرم نه بلکې داجتماعي ضرورت په توګه عادي چاري معرفي کړي او فاحشو ښځو ته داسې زمينه په افغانستان کې هم برابره کړي لکه څرنګه چې همدا اوس په فرانسه، انګلستان، المان، روس، او امريکا کې ده چې زنا کاره ښځه په خپل ناوړه فعل دشرم پر ځای وياړوکړي او دزنا کولو قصې په لبرالستو مطبوعاتي سرچينو وپلوري لکه څرنګه چې په امريکاکې دمونيکاليو نيسکي ماجرا يوه ښکاره بېلګه ده چې په لاندې کرښو کې ددليل په توګه وړاندې کولی شي:
مونيکا ليونسکي دامريکا دپخواني جمهور رئيس ښاغلی بل کلنټن سکرټره وه او په سپينه ماڼۍ کې يې دکلنټن په ځان ګړی دفتر کې دهغه دسکرټري په توګه رسمي دنده لرله، خو له دې سره سره بل کلنټن له هغې سره جنسي اړيکې هم لرلې چې په ۱۹۹۸م کې پخپله مو نيکا افشاء کړی او دواشنګټن په محکمه کې يې پرنوموړي جمهور رئيس دخپل مېړه په مشوره دسيکس سکينډل يعنې دزناکاري دوسيه دائره کړه. او ددې پرځای چې مونيکا له ښاغلي کلنټن سره داوږدې

مودې دفحاشي کولو په خپلو اړيکو وشرمېږي په ډېر ویاړ سره يې له خپل دغه ناوړه عمل څخه پرده او چته کړه.
مونيکاليونسکي پردې باندې هم بس والی ونه کړ بلکې اعلان يې وکړ چې دابه پدې اړوند تفصيلي کتاب ليکي
دنوموړي له دغه اعلان سره سم دامريکا دکتاب چاپولو موسسو له مونيکا سره ليده کاته پيل کړل او هر يو به دکتاب دپيرودلو افرور ته کاوه تر دې چې دامريکا له ګردو څخه دکتاب چاپولو يوې نامتو اداري ترون ورسره وکړ چې هغه به مونيکا ته ددغه کتاب اته مليونه ډالر ورکوي.
دغه راز نه يوازې دا چې مونيکا پر خپل دغه عمل وياړ کوي ښاغلی بل کلنټن هم دخپل دغه حيواني عمل پر افشاء کيدو هيڅ پروا ونه کړه، ځکه چې په امريکا کې په اجتماعي لبراليزم کې دفحشا دازادي کمپاين له کلنټن څخه دمخه هم دامريکا جمهور رئيسانو پيل کړي او چلولی و لکه چې په ۱۹۹۸م کال کې په دې اړوند په امريکا کې يو کتاب ليکلی شوی او چاپ شوی دی چې په هغه کې دبل کلنټن په ګډون دامريکاد ديارلسو جمهورو رئيسانو نومونه او دهغوی دجنسي بېلارتيا وقصي ذکر دی چې نومونه يې په لاندې ډول ښودلی شوي دي:
۱ ـ جارج واشنګټن له ۱۷۸۹ څخه تر ۱۷۹۷ پورې جمهور رئيس.

۲_ توماس جیفرسن له ۱۸۰۱ څخه تر ۱۸۰۹م پورې
دامریکا جمهور رئیس
۳_ اینډریوجیکسن له ۱۸۲۹ څخه تر ۱۸۳۷ پورې
دامریکا جمهور رئیس.
۴_ جیمز بوچانن له ۱۸۵۷ څخه تر ۱۸۶۱م پورې دامریکا
جمهور رئیس.
۵_ جیمز کار فیلډ په ۱۸۸۱ م کې
۶_ ګرو ور کیلو لینډ له ۱۸۸۵م څخه تر ۱۸۸۹ پورې
دامریکا جمهور رئیس.
۷_ ووډور ویلسن له ۱۹۱۳م څخه تر ۱۹۲۱ پورې
دامریکا جمهور رئیس.
۸_ وارن هار ډینګ له ۱۹۲۱ څخه تر ۱۹۲۳ پورې
دامریکا جمهور رئیس.
۹_ فرینکلن روز ویلټ له ۱۹۳۳م څخه تر ۱۹۴۵ پورې
دامریکا جمهور رئیس.
۱۰_ ډ ویټ ایزن هاور له ۱۹۵۳ څخه تر ۱۹۶۱م پورې
دامریکا جمهور رئیس.
۱۱_ جان اف کنیډي له ۱۹۶۱ څخه تر ۱۹۶۳م پورې
دامریکا جمهور رئیس.
۱۲_ لینډن بي جانسن له ۱۹۶۳ څخه تر ۱۹۶۹ پورې
دامریکا جمهور رئیس.

۱۳_ بل کلنټن له ۱۹۹۲ څخه تر ۱۹۹۹ پورې دامریکا جمهور رئیس.

کتاب لیکلی دی: دامریکادغه صدور دومره عیاش وو چې هر یو لس ډوله جنسي او دزناکاري په بې لارتیا کې ملوث وو او له جیفرسن څخه پرته نورو ګردو له بې واده نجونو سره هم اړیکې لرلې او له دوی څخه دهغوی اولادونه هم شوي وو.

امریکا او اروپايي اسلام دښمنه ملتونه په افغانستان کې داسې اجتماعي لبرالیزم او دښځوازادي غواړي چې هره ښځه دالیزابت ټیلر په شان شپږویشت مېړونه وکړي او بیا طلاق ورڅخه تر لاسه کړي دامېړه ته طلاق ورکړي. ځکه چې داجتماعي لبرالیزم او دغرب په قاموس کې ددیموکراسي اود ښځو دازادي همدغه معنا ده.

داسې اجتماعي لبرالیزم چې له هلکانو سره دښځو په شان ودونه کولی شي. داسې اجتماعي لبرالیزم چې هلکان او نجونه پکې پلورلي او پېرودلي شي لکه چې دامریکا دایریزونا په ایالت کې دغه کاروبار قانوني دی او په ازادانه توګه کولی شي. دپاکستان داوصاف ورځپاڼې په ۱۳۷۷ دچنګاښ په شپږمه د ۱۹۹۸م کال دجون په ۲۷ په خپله ګڼه کې لیکلي دي چې په نوموړي امریکايي ایالت کې دپولیسو یو مشر مسټر ډګر من خان فرز ویلي دي: په

ایریزوناکې دنجونو او هلکانو پلورل او پیرودل یوه عادي اوقانوني خبره ده ان تردې چې یو هلك یانجلۍ څو څو ځلې پلورلی کېږي لکه چې نوموړې ویلي دي. یوې نجلۍ ده ته وویل چې داځلور ځلي پلورل شوې ده.

داسې اجتماعي لبرالیزم چې کله هلك او نجلۍ بلوغ ته ورسېږي له مور او پلار څخه ازادوي او والدین هېڅ حق پرې نه لري، او کله چې مور او پلار زاړه او بوډاگان شي او ځانونو ته دروزي گټلو او کسب کولو جوګه نه وي. دار المساکین ته داخل کړای شي او په اولاد باندې دپالنې هېڅ حق ونه لري. لکه همدا اوس چې په اروپايي او امریکايي ټولنو کې دود دی. ان تر دې چې یو ځوی خپل سپي، پیشو او یوه لور خپل شادي (بیزوته) ځوارلس اوشل جوړه قیمتي لباس پیري، خو مور او پلارته یوه جوړه کالي هم نه کوي. یو بډای ځوی او لور خپلې پیشو او سپي ته له خپل مال او دولت څخه په لکونو پونډونه اوډالره وصیت کوي خوخپل بې وزلي پلار مور، ورور او بل خپلوان ته یو ډالر هم نه ورکوي. ځکه چې دلبرالیزم له اصولو سره سم داد هغه خپل شته او دولت دی چې هر څه پرې کوي او هر ډول یې مصرف کوي څوك یې دمنعه کولو حق نه لري. دادی اجتماعي لبرالیزم.

**مذهبي لبراليزم:** په افغانستان کې دلبراليزم دغورځنګ په روان پنځم پړاو کې دخارج واکر بش له اعلان سره سم چې په افغانستان کې باید مذهبي ازادي وي. غیر اسلامي ادیانو او مذاهبو هم فعالیت پیل کړ او مسیحي مرستندویه موسسو دشلتونو په ګډون په کابل، ننګرهار او نورو سیمو کې خپل تبشیري دعوت پیل کړی دی، او په افغانستان کې دسیاسي ثبات له فقدان څخه په ګټه اخیستلو نورو اسلام دښمنو ادیانو لکه بهائیت، اغاخانیت قادیانیزم او داسې نورو هم خپل دعوتونه پیل کړي دي. او دافغانستان دمسلمان ملت له اسلام څخه دمرتد کولو په تکل له مختلفو وسایلو څخه استفاده کوي چې ډېر مهم یې مالي مرستې، ویډیو کیسټونه، په پښتو او دري ژبو لیکلي شوي اسلام ضد کتابونه رسالې، سیمینارونه، غونډې او داسې نور دي. خو دا هر څه اوس په څیر کانه او محتاطانه توګه کوي. او داسې وګړو ته بلنه ورکوي چې کفر یې یو ستر ګه ده او اسلام بله. یعنې ددوی په اصطلاح پینډ امینډ لیسټ نه وي ازاد خیاله لیبرال افغان وي، یا انېړوی.

**لبراليزم دتحريك په توګه:** په اسوني دور کې په افغانستان کې دلبراليزم دغورځنګ له تېرو پړاوونو څخه یو اضافه کار داپیل شوی دی چې لبراليزم دیو مفکورې، تحریك او فلسفې په توګه دپیل کولو هوډنیولی شوی دی او دلوېدیځ سیکولر

جمهوريت غواړي چې دافغانستان روڼ اندي نوی توکوم دديموكراسي او ليبراليزم په اجنبي اسلام دښمنه سياسي او فكري او بې لاري كوونكو فلسفيانه نظرياتو سره لارورکې کړي.
او دخپلې دغې ناولې موخې لپاره يې خپل ګومارل شوي يې وجدانه او دين پلورلي يو افغان اجمل سهيل ګومارلي دي چې دديموكراسي او كمونيزم له ناكامو ازموينو څخه وروسته داځل دليبراليزم طاغوتي او كافرانه ايډيالوژي تجربه کړي.
دلوموړنيو هغو معلوماتو له مخې چې دليبراليزم دغورځنګ دفعالولو په اړوند او په افغانستان كې په تعليمي مراكزو، حكومتي ادارو او فابريكو كې دځوان توكوم په منځ كې دترويج او منسبنت په تكل، دامريكا او اروپايي سيكولريزم له پلوه په مليونونو بوديجه ورته بېله کړای شوې ده. دغه راز له بې وزلو افغاني محصلينو سره مرسته، دګرين كارډ وركولو او په رسمي ادارو كې په غرب كې په رسمي دندو دګومارلو تمه وركول هم دليبراليزم دبريا لپاره دهلو ځلو ونډه ده. خو مونږ باور لرو چې زمونږ مومن روڼ اندي ځوانان به دهغوی دغه اسلام دښمنه توطئه هم شنډوي انشاء الله.

(تمت باالخير)

۴_ پال سارتر: Paul Sartre 1980-1905 فرانسوي په خپلو ليکنو کې دلبراليزم تيوري ښه ترا په ډاګه کړې او ويلي يې دي: دانسان ازادي تر هغه پورې بشپړه کېدلای نه شي: تر څو پورې چې دی (انسان) له الله، مذهب او اخلاقو څخه ازادي تر لاسه نه کړي.

۵_ ادم سميټ: Adam Smith -1772-1823 برتانوي چې دلوېديځ داقتصادياتو پلار ګڼلی کېږي. په اقتصادي ډګر کې دلبراليزم يعنې دفرد ازادي او خپلواکې لازمي ګرځولې ده او په خپلو تصانيفو کې يې په ډاګيزه توګه ويلي دي:

په اقتصادي مسايلو کې دمذهب او دين لپاره هيڅ ځای نشته ځکه تر څو چې مذهبي بنديزونه، حلال او حرام پای ته ونه رسولی شي فردي اقتصادي ازادي تحقق ميندلی نه شي.

مطلب دا چې دلوېديځ زياترو فيلسوفانو او ساينس پوهانو دلبراليزم وحشي مفکوره په اروپا او امريکا کې دومره زياته تبليغ کړه چې پرګردو بشري ملتونو يې اغيزه وکړه او پلويان يې وګرځېدل.

**دبوروکراسي ملاتړ:** دجرمي بنتهام دلبراليزم له نوښت سره دلوېديځ بوروکراسي او اداري قوانينو هم په زړه

# د مصنف چاپ شوي کتابونه

| | |
|---|---|
| ۱ - قدوة الاحکام ، حدیث | تالیف |
| ۲ - اسلامي اقتصادي نظام | تالیف |
| ۳ - اسلامي قیادت | تالیف |
| ٤ - د کمونیزم سره برېدکي | تالیف |
| ۵ - کا جي بي | تالیف |
| ٦ - جهاد او غنیمت برنده جایزه | تالیف |
| ۷ - د جهاد اداب | تالیف |
| ۸ - ناروا دودونه او... | تالیف |
| ۹ - اخوان المسلمین | تالیف |
| ۱۰ - تلیاتي ژوندی | تالیف |
| ۱۱ - حج او عمره | تالیف |
| ۱۲ - د روژې احکام | تالیف |
| ۱۳ - سي آی اي | تالیف |
| ۱٤ - برهمال شهید | تالیف |
| ۱۵ - د فلسطین مستعمره کول... | تالیف |
| ۱٦ - هجرت او مهاجر | تالیف |
| ۱۷ - غازي | تالیف |
| ۱۸ - ترجمان الحق | تالیف |
| ۱۹ - فکري استعمار | تالیف |
| ۲۰ - افغانستان بعد تداخل الروس | تالیف |
| ۲۱ - په اسلام کې د حزب جوړولو حکم | تالیف |
| ۲۲ - د سلام شرعي اداب | تالیف |
| ۲۳ - د مېړه او ښځې یو پر بل حقوق | تالیف |
| ۲٤ - اسلامي حجاب | تالیف |
| ۲۵ - اېښېدان | تالیف |
| ۲٦ - ناروا خون | تالیف |
| ۲۷ - د حدیث پوهنې اصول | تالیف |
| ۲۸ - د محمد بن عبدالوهاب اصلاحي... | تالیف |
| ۲۹ - بواسیر او د هغوی علاج | تالیف |
| ۳۰ - د رشل | تالیف |
| ۳۱ - انجنیر احمد شاه سوانح | تالیف |
| ۳۲ - د سناتور علامه سخي خان سوانح | تالیف |
| ۳۳ - د افغانستان ملت ظاهر شاه ... | تالیف |
| ۳٤ - د ژبو او لیک اسلامي تاریخ | تالیف |
| ۳۵ - حماس یا د انتفاضه تحریک | تالیف |



| | |
|---|---|
| ۳٦ - ابن کثیر ۱۰ ټوک | ترجمه |
| ۳۷ - اسلامي تعذیب او تړون | ترجمه |
| ۳۸ - کتاب التوحید | ترجمه |
| ۳۹ - زیارة القبور | ترجمه |
| ٤۰ - د نبي کریم (ص) لمونځ | ترجمه |
| ٤۱ - له مسلمانانو سره شخه ... | ترجمه |
| ٤۲ - اسلامي حکومت | ترجمه |
| ٤۳ - فضل الاسلام | ترجمه |
| ٤٤ - اصحاب صفه | ترجمه |
| ٤۵ - صحیح عقیده | ترجمه |
| ٤٦ - شعب الایمان | ترجمه |
| ٤۷ - المأثورات | ترجمه |
| ٤۸ - اتباع الرسول | ترجمه |
| ٤۹ - رساله تعلیم | ترجمه |
| ۵۰ - عقاید | ترجمه |
| ۵۱ - کتاب الکبائر | ترجمه |
| ۵۲ - د ابن باز جهادي فتوی | ترجمه |
| ۵۳ - پر ښتو عمل فرض دی | ترجمه |
| ۵٤ - عکس او تصویر د اسلام... | ترجمه |
| ۵۵ - د حج او عمرې مسایل | ترجمه |

B
4.44
AHM
10458

| | |
|---|---|
| _ انتخابات د اسلام له نظره | تالیف |
| ۵۷_ مادرن واده او اسلام | تالیف |
| ۵۸_ د مېره او مېرمن یو پر بل حقوق | تالیف |
| ۵۹_ له کور څخه د ښځې د وتلو او سفر احکام | تالیف |
| ۶۰_ اعتکاف | تالیف |
| ۶۱_ قضاء عمري | ترجمه |
| ۶۲_ د هر مسمان عقیده | ترجمه |
| ۶۳_ روژه | ترجمه |
| ۶۴_ نوروز د مجوسیانو اختر دی | تالیف |
| ۶۵_ اسلامي اقتصاد او غربیت | تالیف |
| ۶۶_ د تجارت اسلامي قانون | تالیف |
| ۶۷_ په اسلامي دعوت کې د ښځو ونډه | تالیف |
| ۶۸_ اسلامي اجتماعي نظام | تالیف |
| ۶۹_ اسلامي سیاسي نظام | تالیف |
| ۷۰_ د ښځو اسلامي روزنه | تالیف |
| ۷۱_ د اولاد حقوق | تالیف |
| ۷۲_ د مور او پلار حقوق | تالیف |
| ۷۳_ د اولاد اسلامي تربیه | تالیف |
| ۷۴_ اداري قانون | تالیف |
| ۷۵_ په افغانستان کې د لبرالیز ... | تالیف |
| ۷۶_ شرعي علوم او غیر شرعي علوم | تالیف |

پورې مرسته وکړه، او هغه داسې چې اروپايي حکومتونو خپل ګرد قوا نين اقتصادي، سياسي، تعليمي، نظامي او اجتماعي يې دلبراليزم له اصولو سره سم جوړ کړل، ان تر دې چې په اجتماعي ډګر کې ځينې حکومتونو دومره افراط وکړ چې لواطت او دهمجنسی ازدواج يې هم قانوني وګرځاوه چې زه د بېلګې په توګه دلته ديو څو حکومتونو او مقننه ادارو يادونه لازمي ګڼم.

*دالمان حکومت:* په جرمني کې په 1928 کې دلبراليزم او فردي ازادي په ملاتړ کې دهغه وخت پارلمان درايو په اکثريت سره داقانوني ماده تصويب کړه چې لواطت قانوني جرم نه دی خو په دې شرط چې دطرفينو په خپل منځي رضامندی سره وي. دغه راز نارينه له نارينه سره واده هم کولی شي او که چېرې منکوح هلك نا بالغ وي او غواړي چې له غټ سړي سره واده وکړي نو داسې کولی شي او دا دده حق دی مګر دنابالغ منکوح هلك دايجاب او قبول رسم به په حکومتي رسمي محکمه کې دهغه ولي تر سره کوي. دجرمني دپارلمان او حکومت له دغې قانوني اجازت نامې ورکولو څخه وروسته دالمان وتلی اديب ډاکټر برشفيلډ په پرله پسې توګه شپږ کلونه دلواطت دترويج او همجنسي

ازدواج له پاره تبليغات وکړل ځکه چې نوموړی دالمان دلبراليزم دڅانګې مسئول و.

بريتانوي حکومت: دالمان له حکومت او پارلمان څخه وروسته دانګلستان حکومت او پارلمان دغه شيطاني لبراليستي ازادي اعلان او قانوني ګرځولی وه، او هغه داسې کله چې په 1967 کال کې دانګلستان د حکومت يو وزير دلواطت مرتکب شونو دانګلستان په پارلمان دار العوام کې دغه موضوع تربحث لاندې ونيولی شوه او جنايت کوونکي وزير پارلمان ته احضار کړای شو او کله چې پدې اړوند پوښتنه ورڅخه وکړای شوه نو هغه شرمنده نه شو او په ډېر ويارېې وويل: زه ديو فرد په توګه حق لرم چې څه کوم بايد ازاد اوسېږم، او حکومت يا قانوني ځواک حق نه لري چې زما دازادۍ په لاره کې خنډ شي.

دانګلستان دپارلمان زياتره غړو دوزير دوينا ملاتړ وکړ چې په نتيجه کې يې د ۱۴ په مقابل کې د ۶۹ درايو په اکثريت دچکچکو په بدرګه داقانون منظور او تصويب کړای شو چې دوه نارينه په خپله خوښه کولی شي بالمثل تلذ ذحاصل کړي. او بيا ملکه اليزابيت هغه لاس ليک کړ چې په دې

توګه په بریتانوي اجتماعي نظام کې لواطت قانوني وګرځولی شو.[1]

<u>د امریکا حکومت:</u> امریکایي سیکولر حکومت هم په خپلو دوه پنځوس ایالتونو کې دلبرالیزم په ترویج کې له اروپایي حکومتونو څخه کم نه دی بلکې له فرانسې څخه هم په اجتماعي ډګر کې دلبرالیزم دتیوري په عملي کولو کې زیات وړاندې دي، څکه چې په پاریس کې په سوونو ښځو عریان لاریون کړی ومګر په امریکا کې دبې حیاء او فاحشو شمېر په لکونو دی لکه چې په ۱۹۵۴م کې دامریکا دسترې محکمې قاضي دوه لکه بربنډ تصاویر ولیدل نو په خواشیني سره یې وویل له نیویارك څخه سدوم او عمور یا جوړېدونکی دی. "سدوم او عموریه دلوط علیه السلام دامت هغه دوه ښارونه و چې په څلورنیم زره قبل مسیح کې الله تعالی دلواطت دجنایت په سبب تباه کړي وو."

یوازې دامریکا دهمدغه نیویارك په ایالت کې دهغو ښځو شمېره پنځه پنځوس لکه یعنې پنځه نیم ملیونه څلوېښت زره او وه سوه ښودلی شوې ده چې، دلبرالیزم له نظر سره

---

[1] اسلامي اقتصادي نظام دکمونستی او کپیتالیزم په مقایسه ص۹ مولانا شمس الحق افغاني اردو. الحق مجله د ۱۹۶۷ کېه اګست.

سم داجرت اخیستلو په بدل کې زنا ، جسم پلورنه او دفحشاء دنده کوي.
په ۱۹۹۲ کې په نیویارك کې لس زره ښځو لاریون وکړ او او دامریکا له حکومت څخه یې غوښتنه وکړه چې دهمجنس ازدواج یعنې دښځې له ښځې سره واده او سحق، او دنارینه له نارینه سره واده کول او لواطت Homsex په امریکا کې قانوني وګرځولی شي او هغوی دامریکا دهغه وخت ولس مشر بل کلنټن ته بلنه ورکړې وه چې په دغه لاریون کې ګډون ورسره وکړي. نوموړي په ځواب کې ورته ویلي و: ستاسې دغوښتنې پلوی یم مګر په لاریون کې دحکومتي مصروفیتونو له امله معذرت در څخه غواړم.[1]
دلبرالیزم دبنسټ کېښودو نکی جرجي بنتهام په هېواد انګلستان کې پنځه سوه زره وګړي لوخ لغړ ګرځېږي په داسې ډول چې شرم ځایونه یې پټ نه دي، او دغه شمېره په ۱۹۵۳ کال کې دمی دمیاشتې په دوه ویشتمه ۲۲ نېټه خپره کړای شوې وه. او لواطت خو دفرنګیانو امریکایانو، فرانسویانو، جرمنیانو او نورو دتهذیب ونډه ګرځولی شوې ده او دلبرالیزم له حکم سره سم یې خپل پنځیز حق ګڼي.

---

[1] مشرق ورځپاڼه د ۱۹۹۲ دمی دمیاشتې ګڼه.

## په تعليمي نصاب کې د Subject په توګه:

دلوېديځ او امريکا حکومتونو په دې هم بسنه ونه کړه چې دبشريت لويان دلبراليزم په بويګن. وحشي او خوسا ډندکی غوپه کړی بلکې په تعليمي نصاب کې دکوچنيانو لپاره هم جنسي غريزه سړول دمضمون (Subject sex) په توګه داخل او لازمي وګرځول شوه څو هلک او نجلۍ په وړوکوالي کې د دغه شيطاني او حيواني عمل اورذيله کار Exercise ايکسرسايز يعنې مشق وکړي. او په عملي توګه داروپا او امريکا په ښوونځيو کې پرماشومانو دبيحيايي دغه مشق کولی شي لکه چې يوې امريکايي اديبې او ليکوالې ډالتراپدېټ هوکر په خپل تصنيف کړي کتاب Lawsof sex کې داسې ليکلي دي:

"يوه اووه کلنه کوچنۍ نجلۍ.چې دخورا اوچتې امريکايي کورنۍ څخه ده له خپل ورور سره چې له دې څخه په عمر کې غټ دی او د هغه له څو نورو ملګرو سره دجنسي غريزې داطفاء په مشق کولو باندې لګيا ده. نوموړې ليکوالې ليکلي دي:

دغه راز ما د کوچنيانو يوه بله ډله وليده چې پنځه کسان وو، دوه يې جينکی وې او درې يې هلکان وو چې په خپل منځ کې يې شهواني ايکسر سائز سره کاوه. او نه يوازې دا

چې دوی په خپل منځ کې داسې سره کول بلکې نورې نجونه او هلکان به یې هم دغه کارته هڅول او دعوت به یې ورکاوه. او په هغو پنځو وارو کې له ګردو ځخه مشر ماشوم لس کلن و او نور له دوی ځخه ټول په عمر کې واړه وو.[1]

دغه ده لبرالیزم چې لوېدیځ او اسلام دښمنه امریکایې په افغانستان او اسلامي امت کې پلي کول غواړي څو اسلامي امت او بیا په خاصه توګه د افغانستان په اسلامي تهذیب سربښندونکی ملت هم له ځان سره دوحشت او بې حیایي په خوم کې رنګ کړی او دهمدغه مقصد لپاره دامریکا ولس مشر اسلامي هېوادونو ته په زیات الحاح او ټینګار سره بیا بیا وایي چې مسلمانان هرو مرو باید په تعلیمي نصاب کې بدلون او تغیر ته غاړه کېږدي دامریکا او داروپایي پرمختللو هېوادونو جوړکړي نصاب په خپلو ګردو تعلیمي مراکزو کې ترویج کړي. او که داسې ونه کړي نو مونږ دوستي او مرستې کولو سره ورته ورچمتو نه یو.

---

[1]حقوق الفرد في مجتمع الغربي ص۱۶ د مولانا عبدالرحمن ګیلاني په حواله.

# مراحل

په اروپایي او امریکایي ټولنو کې او بیا له هغه څخه وروسته لبرالیزم اوسنی Globalization یعنې نړیوال توب له خپل تبارز سره سم نه دی ترلاسه کړی بلکې لکه څرنګه چې ټولنپوهانو ویلي دي: لبرالیزم په څلورو ادوارو او مراحلو کې او سني حالت ته رسېدلی او هغه څلور مراحل یې په لاندې توګه بیان کړي دي:

## لومړۍ مرحله:

دلبرالیزم لومړۍ مرحله له ۱۷۷۹م کال څخه تر ۱۸۳۲م کال پورې ښودلی شوی ده. دلبرالیزم دغه شپږ پنځوس کلن دور دلبرالیزم دطفولیت دور دی چې دده نوښت ګر انګلیسي فیلسوف جرجي بنتهام ژوندي و او قیادت یې په خپله هغه کاوه.

په دغه مرحله کې لبرالیزم یو ډول Radicalism و چې دجزري بدلون غوښتنه یې کوله، او په سیستماتیکه توګه یې اصول ورته کېښودلي وو او دهغو اصولو یې په عملي ډګر کې دانګلیس له بورو کراسی څخه د عملي کولو غوښتنه کوله او هغه اصول یې په لاندې ډول دي:

الف: په مطلق ډول دفرد لپاره دفکر او عقیدې ازادی.

ب: په مطلق ډول د بیان ازادي چې له هر ډول دیني او قانوني بندیزونو او قیودو څخه ازاد وي.

ج: په مطلق ډول دفرد لپاره دعمل ازادي، پدې معنا چې دفرد څه خوښه وي هغه وکړي. په مخه کې يې هيڅ ډول ديني او قانوني بنديزونه او خنډونه حائل نه وي.
د: د فردي اصالت دتيوري بشپړ او هر اړخيز ملاتړ.
ه: فرد ته دانتقاد کولو مطلق ازادي. په دې معنا فرد حق لري چې په هر ډول قانون نيوکه وکړي. برابره خبره ده که هغه سماوي قانون وي او که بشري وضعي قانون وي. له دې سره سره جرمي بنتهام په فلاسفه و کې لومړی فيلسوف و چې د Utilitorionism نظريه يې هم منځته راوړې ده، او د يوټيليټاريانيزم معنا ده: له زيان قبلولو څخه پرته په هر څه کې ګټه ترلاسه کول. جرمي بنتهام دخپلې يوټيليټاريانيزم په فلسفه کې داقتصادي اړخ اصول له خپل سلف فيلسوف Adam smith متوفي ۱۷۹۰م څخه اخيستلي دي.
چې دهغه په اقتصادي اصولو کې تر ډېره حده د Fronois Cuesnoy فرانسو کوسنی د Physiocrolcy فيزيوکراسي يعنې سوچه فردي منفعت طلبي فلسفه نغښتلې ده. چې بيا دجرمي بنتهام له مرګ څخه وروسته د هغه دغه مرکب معجون په درې بېلابېلو نظرياتو ووېشل شول او درې فلسفي ښوونځي ور څخه جوړ کړای شول: راډيکاليزم. يوټيليټاريانيزم او لبراليزم چې ددغوګردو اساس او سرچينه

لبرالیزم دی ځکه چې درې واړه دفرد دمادي ګټو پر محور باندې چورلیږي.

## دویمه مرحله:

دلبرالیزم دویمه مرحله له ۱۸۳۲م کال څخه پیل او په ۱۸۸۰م کال کې پای ته رسیږي. په دغه مرحله کې دلبرالیزم قیادت او زعامت ددوه نورو انګلیسي فیلسوفانو Herber spenser هر برټ اسپنسر مړ ۱۹۰۳م او Sturat millاستهوراټ مل مړ په ۱۸۷۳م پر غاړه لاره. په دغه مرحله کې لبرالیزم دجرمي بنتهام پرموضوعه اصولو قایم و، مګر جان استهوراټ مل داکار پکې وکړ چې دسوسیالیزم هغه اصول یې هم پکې دننه کړل چې دبنتهام دلبرالیزم له اصولو سره موافق وو. ستهوراټ مل دلبرالیزم په دویمه مرحله کې په لبرالیزم کې څرګند انقلاب داوکړ چې دجرمي بنتهام دلبرالیزم پنځم اصل انتقاد ته یې وده ورکړه او هغه یې پر ښو ودراوه چې تر دغه مهاله پورې پلي کړای شوی نه وستهوراټ مل دریم کارد اوکړ چې د Auguste comte اګوسټ کومټ فرانسوي کمونسټ فیلسوف مړ په ۱۸۵۷م کال نظریات یې هم پکې دننه کړل. دغه راز ددوه الماني فیلسوفانو Somuel Toylor Corleridge سوموېل ټیولر کولریج مړ په ۱۸۳۴م کې او Thomos Corlyle دیموس

# سریزه

د ۱۴۲۲هـ کال درجب دمیاشتي په یویشتمه د ۱۳۸۰ ش کال دتلي دمیاشتې له پنځلسمې او د ۲۰۰۱م کال داکتوبر له اتمې نېټې سره سم ددوشنبې په شپه په نهه نیمو بجو د شپې تور امریکایي امپریالیزم دخپلوګوډاګیانو په ملتیا زموږ پر ګران هېواد اولرغوني ټاټوبي افغانستان نظامي یرغل وکړ او ددوه زره کلو یې اټمي بمونو د B52 الوتکو په

غورځولو سره یې زموږ دمومن او سوله دوست ملت په زرګونو کوچنیانو، بوډاګانو، ځوانانو، نارینه او ښځو په لکونو لیټره معصومې وینې وبهولې او دبې ګناه پګو اندامونه یې ټکړې ټکړې کړل. او له سور خونړي ښکېلاک څخه پاتې تعمیرونه یې ړنګ او کنډوالې وګرځول چې تر اوسه پورې دامریکایي وحشي ښکېلاک دظلمونو لړۍ دوام لري.

له بل پلوه دامریکایي بشر دښمنه او اسلام دښمنه ښکېلاک ځناورصفته ولس مشر جارج واکربش دکروسیډ وار یعنې صلیبي جنګ په اعلانولو سره دوسلوال یرغل په څنګ کې فکري استعمار هم زموږ دملت په خلاف پیل کړی دی، او

کار لایل مړ په ۱۸۸۱م کال کې عقاید یې هم دبنتهام له لبرالیزم سره مزج کړل.

داستهوراټ او سپنسر دغونوبنتونو که له یو پلوه دبنتهام دلبرالیزم پګه مسخ کړه او هغه یې له خپل اصل مسیر څخه منحرف کړ، مګر دغه تحریك ته یې په زړه پورې انکشاف هم ورکړ، کمونستان او لبرالستان یې په یو چورلیځ سره راغونډ کړل. سیکولریزم. دیموکراسي، کمونیزم او لبرالیزم یې سره یوکړل. ځکه چې دغه څلور واړه صرف په نومونو کې سره بېل دي. او یوازې په یو اصل کې اختلاف سره لري او هغه دا چې کمونیزم فرد دټولنې یوه پرزه ګڼي او مالکیت یې ملغي ګڼي او دغه نور درې واړه دفرد پر اصالت قایل دي ټولنې ته په ارزښت قایل نه دي پاتې په نورو اصولو کې څلور واړه مادي، ددین او معنویاتو منکر دی، دمتافزیکي معتقداتو منونکي یو هم نه دي.

دریمه مرحله:

په انګلستان او ګرده اروپا کې دلبرالیزم دریمه مرحله ۱۸۸۰م کال څخه وروسته پیل شوې وه. او ددغې مرحلې مخکښې یې نامتو فیلسوف Dealiset توماس هیل ګرین و. په دغه مرحله کې دلبرالیزم دسازمان او دهغه دلومړنیو افکارو دتجدید هاندوکړای شو. دهیل ګرین هاند داو چې

لبراليزم پر اخلاقي I Dealism عيار کړی. پر هغه اخلاقي ايډياليزم "خيال پرستي" چې دهغه نسبت يې دکارل مارکس استاذ Earnst Haechel الماني او Kant الماني ته کړی و او دغه دواړه دکمونيزم له سترو مخکښانو څخه و. په داسې حال کې چې په خپله توماس هيل ګرين، انګليسي دافلاطون او سن اګوستون دايډياليزم معتقد و. بنايي هغه داکار ددې لپاره کاوه چې کمونستان له ځان څخه خوښ کړي.

توماس هيل ګرين دلبراليسم په دغه مرحله کې دويم کار دا وکړ چې هغه په اقتصادي امورو دفرد کې دلزوم په صورت کې دحکومت تصرف مشروع وګرځاوه چې، دنومړي دغه تجديد دجرمي بنتهام له لو مړينو لبراليستي اصولو څخه بېخي خلاف و.

## څلورمه مرحله:

دلبراليزم څلورمه مرحله په ۱۹۱۵م کال کې په انګلستان کې پيل شوی وه. په دغه مرحله کې دلبراليزم دړومبنيو مراحلو په شان کومه نوې تيوري پکې اضافه نه کړای شوه او ددې سبب دا بنودلی شوی دی چې ددريمې لبرالي مرحلې مخکښې ژوندی و او د انګليسي لبراليزم دچلولو واکي دهماغه يعنې توماس هيل ګرين په لاس کې وي.

همدغه لامل دی چې دهغه وخت ټولنپوهانو او سیاسي مبصرینو دغه څلورمه مرحله دلبرالیزم ددریمې مرحلې متممه او بشپړوونکې ګڼلې ده. او هغه داسې چې هیل ګرین په دریمه مرحله کې دلبرالیزم په پالیسي کې کوم نوښتونه اضافه کړي وو چې ډېر مهم نوښت یې لبرالیزم ته دایډیالیزم "خیال پرستي" دننه کول و، دهغه دتطبیق او تعمیم په هاند کې مصروف و، او د اتمه یې لرله چې لبرالیزم به پرې کرورلی کړي، مګر دنومورې دغه تکل سرچپه پایله ورکړه او هغه داسې چې په تحریك کې موجودو ریالستانو "حقیقت پرستو او دعملي کارکوونکو پلویانو"

مخالفت ورسره وکړ چې په نتیجه کې یې په یوسل او پنځوس کلن لبرالیزم کې تجزیه او انشعاب راغی. چې له همدې امله ویلی شو دلبرالیزم څلورمه مرحله دهغه دتېکړه ګیدو مرحله وه.






# دولونه

په څلورمه مرحله کې دتوماس هيل ګرين په ژوندون کې لبراليزم تجزيه کړای شو داځکه چې په دويمه مرحله کې دلبراليز مخکښې دسترکمونست فيلسوف جان استوراټ مل په لاس کې وه. او نومړی دالله له مقدس ذات څخه منکرو، اخلاق او دين يې خرافات ګڼل، او دخپل پنځوس کلن قيادت په موده کې يې دهيګل دفلسفې په پلي کولو او تبليغ سره په ګوند کې موجود و په زرګونو وګړي سوساليزم ته معتقد کړل او دنوموړي له مرګ څخه (۴۰) څلويښت کلونه وروسته دهغه دتصنيف کړی مشهور کتاب On Liberty په وزله چې په ۱۸۵۹ کې ليکلی او خپور کړی و لبراليزم په دوه ټکړو منقسم کړ چې په لاندې ډول دي:

**۱_ Conservatism Liberalism کنسرواتيز لبراليزم:**

Conservatism له Conserve کنزروی څخه اخيستل شوی دی چې په انګرېزي ژبدود کې دحفظ په معنا ده له همدې کبله کنزروار تيزم دمحافظه کاري په معنای دی او دټولنپوهانو په اصطلاح کې دامعنا چې ټولنه يا حکومت پرکوم سيستم له پخوا څخه رهي وي دهغه درناوی کول او

دهغه دبقاء تکل کول دي، او دهغه دتبدیلولو مخالفت کول دي. بیا په خاصه توګه په هغه صورت کې چې دغه سیاسي او اجتماعي سیستم طولاني سابقه ولري.
دلبرالیزم دغه ډله په دې نظر وه چې دانګلستان لپاره مشروطه شاهي سیاسي نظام طولاني سابقه لري باید په خپل حال پاتې شي او تغیرورنه کړای شي او دولت دلزوم په صورت کې په فردي اقتصادي چارو، اجتماعي او شخصي امورو کې په نسبي ډول دمداخلې کولو حق لري. پدې شرط چې دفردي اصالت او فردي مطلقه ازادي زیانمنه نه شي.

## ۲ _ Social Liberalism سوشل لبرالیزم:

سوسیالیزم له Social سوشل څخه اخیستل شوي دي او دافرانسوي کلیمه ده چې په فرانسوي ژبدود کې دټولنیز یا اجتماعي په معنا سره دی او په دې اصطلاح کې سوسیالیزم له هغې تیوري او سیاست څخه عبارت دی چې د هغه له نظره دګردو تولیدي وسایلو او ددولت توزیع او صنعتي وسایل دټولنې په ولکه او نظارت کې وي. دغه تیوري د تاریخ پوهانو له نظره له کارل مارکس څخه دوه زره څلور سوه کلونه دمخه دیونان په سپار ټاکي په ۵۸۰ قبل مسیح کې نظامي قوماندان لایي کرګس دلومړي ځل لپاره منځته راوړي وه. بیا دیونان په اتن کې

ډيموکريټ او ديوجانس کلبي په ۳۴۳ قبل مسيح کې بيا په ايران کې په ۵۲۸ ميلادي کې مزدك او بيا په اوولسمه پېړۍ کې دانګلستان Saint simon سن سيمون، بيا دجديد سوسياليزم په نوم استهوراټ مل منځته راوړې وه. دکارل مارکس ابتکار نه و. دومره خبره ده چې جديد سوسياليزم ته کارل مارکس دمزدك دنظرياتو په متابعت هماغه انقلابي بڼه ورکړه چې لومړۍ بنسټ يې لايي کړګس يوناني کېښودلی و او هغه ځمکې، دولت او ښځو اجتماعي حق ګرځول و. او دفردي مالکيت په مطلق ډول ملغی کول و.

دلبراليزم پورتنۍ تجزيه او انشعاب دلبراليزم اصول تالاترغه کړل او بيا په خاصه توګه دلبرال سوسياليزم په جوړېدو سره دفرد ګرد حقوق اوازادي، سياسي وه که اجتماعي، اقتصادي وه او که جسمي له منځه لاړل. مګر دغه تحريك په اروپا او امريکا کې له ناکامي سره مخ شو او اوس هم لومړنی لبراليزم او دهغه اصول په خپل حال پاتې او پکې عملي دی. ځکه ګرده بشري نړۍ ګوري چې په لوېديځ کې فرد له هرڅه څخه ازاد دي، له دين څخه، له حياء څخه، له اخلاقو څخه، او دفردي ازادي په نوم هغه څه کولی شي چې ځنګلي ځناور يې هم نه کوي.

# "څانګې"

لبرالیزم جرمي بنتهام انګلیسي پر اوو څانګو کې لاژمي ګڼلی دی او دغه اووه څانګې په لبرالیزم کې بنستیز مقاصد ګرځولي شوي دي. چې دلبرالیزم په څلورو، واړو پړاونو کې دلبرالیزم دتیوري او فلسفي دګردو مخکښانو له پلوه تایید شوی دی، او دغه اووه څانګې په لاندې ډول ذکر کړای شوي دي:

**۱_ اقتصادي لبرالیزم:** اقتصادي لبرالیزم دامعنا هر فرد ازاد دی چې دهرې لارې او هرې وسیلې په ذریعه دولت ګټلی شي باید ویې ګټي، که دسود خوري په ذریعه وي که دقیمار په وزله وي. که دجسم پلورنې او بړوه ګري په ذریعه وي او که دمخدراتو په ذریعه وي، لکه شراب، مورفین، کوکین، هیروئین، افیم، چرس، بنګ، تمباکو او داسې نور لکه اختلاس، احتکار، بډي، غصب، اجرتي قتل، په تجارت کې دوکه، مصوري او بت پلورنه، عکاسي، سحر، کوډې، ساز او سرود او دهغه سامان الات جوړول او تجارت يې کول او ......... ځکه چې دا دفرد حق دی، نه دین حق لري او نه ټولنه چې دفرد په اقتصادي ازادي بندیزونه ولګوي او دغه حق یا ببخي ورڅخه وتروړي او یایې

دمحدودیتونو په پنجروکې ښکېل کړي، کپټالیزم غواړي که فیوډالیزم، فاشیزم غواړي که دکمونیزم اقتصادي نظام فرد یې په انتخاب کې په مطلق ډول ازاد دی.

**۲ـ سیاسي لبرالیزم:** سیاسي لبرالیزم دامعنا هر انسان داحق لري چې دځان لپاره هر حکومتي او سیاسي سیستم منتخب کوي، سلطنتي نظام غواړي که اشرافي، دیموکراسي غواړي که نشنلیستي، سوسیالیزم غواړي که سیکولریزم، هېڅوك حق نه لري چې فرد دداسې حکومتي سیستم منلوته اړ باسي چې دهغه نه خوښېږي. ځکه چې داسې کول دلبرالیزم او دفردي ازادي په خلاف عمل دی. چې په پنځیزه توګه یې حق داردی، دغه راز دا دفرد حق دی چې په حکومت او اداره کې کار وکړي. هغه هم دخپلې خوښې چې په هره څانګه کې وي او بیا څرنګه چې هغه چلوي دی ازاد دی.

**۳ـ فکري ازادي:** دلبرالیزم په قاموس کې دفکري ازادي معناده له دیني او متافزیکي معتقد اتو څخه ازادي. له حرامو او حالالو څخه ازادي. څخه ازادي، له ممنوع او جواز، خطر او اباحة څخه ازادي، د توحید او شرك له قیلکونو څخه ازادي، دجزا او سزا له حکمونو څخه ازادي، له ثواب او ګناه څخه ازادي، له عبادت او طاعت څخه ازادي، له حساب او کتاب څخه ازادي، له جنت او دوزخ څخه ازادي، له شریعت او قانون

څخه ازادي، لـه نېکـي او بـدۍ څخـه ازادي، لـه قربـت او اجنبيت څخه ازادي، له حياء او ادب څخه ازادي، له احترام او زړه سوی څخه ازادي له عزت او شفقت څخه ازادي، له شر او خير څخه ازادي له عفت او عصمت څخه ازادي، له امانت او خيانت څخه ازادي له تقوا، او ديانت څخه ازادي او په پای کې له انسانيت څخه ازادي.

دلبراليزم فلسفه او تيوري دغه پورتنی ګرد ديني او معنوي اصول، او امر او مناهي، معروفات او منکرات، روحانيات او ايمانيات دفردي ازادي په خلاف ګڼي، دبشري ملتونو او بيا په خاصه توګه داسلامي امت دځوان نسل ايجوکيتېډرونو اندی "روشنفکري" منوري پاټکي يعنې طبقي ته بلنه ورکوي چې ددغو ګردوپورتنيو امورو دله منځه وړلو لپاره بې امانه او نه ستړی کېدونکی مبارزه وکړي، هم خپل ځانونه او هم موجوده او راتلونکی بشري توکوم ورڅخه ازاد کړی.

## ۴_ اجتماعي لبراليزم: 

له اجتماعي ازادي څخه مطلب دادی چې انسان نارينه وي او که ښځه تنوع پسند دی. چې له همدې کبله دفرد لپاره دامشکل دي چې نارينه په يوه منکوحه ياښځه پريومېړه بس والي وکړی. نو فرد حق لري چې په دې اړوند اِزاد پرې ښودلی شي واده کوي او که

نه ازاد محبت Free Love کوي او که ګروپ میرج کوي.
دادفرد خپله رضامندي ده او دفرد حق دی. دغه راز فرد
حق لري چې له همجنس سره واده کوي. یعنې نارینه له
نارینه سره او ښځه له ښځې سره او که له مخالف جنس سره
واده کوي. هېڅ دیني او قانوني بندیز دفرد دغه حق ورڅخه
اخیستلی نه شي، او که چېرې داسې تکل وکړی شي، فرد
حق لري چې هغه خنډ او بندیز په خپل یون او پاڅون سره
پای ته ورسوي.

دلبرالیزم داجتماعي ازادي له اصل سره سم په امریکا او
اروپا کې اجتماعي ازادي فرد ته ورکړای شوي او دغه حق
یې په حکومتي قوانینو کې تثبیت دی چې دازادانه محبت
په نتیجه کې په سلوکې ۷۷ داسې پېغلې نجونه چې په
اوولس کلنۍ کې له قانوني اودودي ازدواج څخه پرته
حاملې شوي دي او بچي یې پیدا شوي دي، او په همدغه
سروي کې ویلی شوي دي: په المان، فرانسه، روم، یونان او
امریکا او نورو غربي هېوادونو کې ډېر داسې نارینه وګړي
دي چې یوه خپله مېرمن لري او له ۲۶ نورو سره ازادانه
محبت کوي. یعنې ازادانه زنا ورسره کوي او داسې ښځې
هم ډېرې دي چې مېړه لري او ۲۶ یې یاران نیولي دي چې
جماع ورسره کوي. او بیا داسې هم نه ده چې داکار مېړه له
خپلې منکوحې مېرمن څخه او مېرمن له خپل مېړه څخه

هوډ يې نيولى دى چې كه وكولى شي دافغانستان مومن او مسلمان ملت بيخي له اسلام څخه واړوي. او دخپلې دغې شومې موخې له پاره يې همدا اوس مختلف وسايل پكار اچولي دي. لكه اقتصادي مرستې، په مختلفو نومونو انجيوګانې، تبشيرې دعوت، قاديانيت، بهائيت، Secularism "سيكولريزم" لبراليزم او داسې نور. خو مونږ باور لرو چې الله تعالى به ددوى داګردي هلې ځلې شنډې او دكمونيزم په څېر ناكام كړي او تور ښكېلاك به هم دسور ښكېلاك په شان نامراد او تورمخ له افغانستان څخه ووځي. لبراليزم زمونږ دافغانستان دځوان ايجوكېټډ نسل له پاره نوى نوم دى ورسره بلد نه دي له همدې كبله له ما څخه دافغان پوهنتون مسلمانو ځوانانو پوښتنه او غوښتنه وكړه چې زه دلبراليزم په باره كې څه وليكم، ځكه چې دغه اسلام دښمنه دعوت پيل شوى دى. ما دخپلو شاګردانو غوښتنه قبوله كړه، او ددې له پاره چې زمونږ دګران هېواد افغانستان روڼ اندي ځوان توكوم. دلبراليزم له حقيقت څخه خبر شي او دتور ښكېلاك لبراليزم ته ددعوت په موخه وپوهېږي لازمه ګڼم لومړى يې تعريف وكړم، بيا يې تاريخ، ځانګې، مراحل او ډولونه وليكم:

پوهنمل جان محمد زاهدي احمدزى لوګر افغانستان
چارشنبه ۱۳۸۱ چنګاښ ۲۶مه د ۱۴۲۳جمادى الاول
۸ د ۲۰۰۲م د۱۸ جولائى.

پټ کوي، بلکې دواړه یو له بل څخه خبروي او یو له بل څخه ښه خوشحاله هم وي ځکه چې هغوی په دغه لبرالیزم معتقد دي.[1]

دغه راز څېړونکو ویلي دي: په اروپا او امریکا کې ځوانان او پېغلې داسې متعدد انجمنونه او ګوندونه لري چې په هغو کې په زرګونو ځوانان او پېغلې داتعهد او پرېکړې سره کوي چې دوی به ټول عمر واده نه کوي او په ازادانه محبت کولو سره به خپل جنسي ضرورت ایفاء کوي، او هغوی دادلیل وړاندې کړی او ویلي یې دي: یو چاته چې هره ورځ او هره شېبه له بازار څخه تازه شیدې تر لاسه کېږي نو په کور کې دغوایا بل شیدې ورکوونکې څاروي ساتلو ته څه اړتیا ده. دغه راز دلبرالیزم په دغه اجتماعي ازادي او ازاد محبت کولو کې. محرمات هم مطرح نه دي. بلکې سکه خورله ورورسره، سکه مور له ځوی سره او سکه پلار له خپلې لور سره جنسي غریضه ایفاء کوي او دهغوی په وړاندې دلبرالیزم له اجتماعي اصل سره سم دایوه عادي خبره ده.[2]

---

(1) نظریه، یك زوجګي ص۵۴ غلام جیلانی، چاټاګام بنګله دیش. الجواب الصحیح لمن بدل دین المسیح ص ۳۷۰ شیخ الاسلام ابن تیمیه. ایوان بلوچ Iwan Bloch Sexual life of ourtime E. Wester march: History of Humnamarraige .Havelockellis: Psychology of sex P 504 ازادانه جنسي اختلاط

(۲) مغربي فلسفه، تعلیم کا تنقیدي مطالعه ص۴۳ پروفیسر محمد سلیم پسي کولوژي اف سیکس هیولاك ایلس

۵ـ دیني لبرالیزم: دیني ازادي دامعنـا چې هـر انسـان اختیار من دی چې دین او مذهب قبلوي او که نـه، هېڅوك هم داحق نه لري چې په اکراه سره یو څوك دکوم دین قبلولـو ته مجبور کړي، ځکه چې په خپله دین دتوهماتو او داسې خیالاتو مجموعه ده چې حقیقت نه لري. داسې خیالات چې ټول واهیي او بې اساسه دي او دبشري افـرادو د ډارولـو، تطمیع او استثمار لپاره منځته راغلی دی. دورکایم وریسې ویلي دي. انسان هم دنورو حیواناتو په شان حیوان دی مګر Progressive پروګرسیو یعنی مترقي، خوزه نه پوهېږم چې دغه مترقي حیوان (انسان) ته ددین او مذهب ضرورت ولې پیدا شو؟

دغـه راز دلبرالیـزم دیـو بـل مفتــي فیلســوف Paul Sartre فرانسـوي ۱۹۸۰م ویلي دي: دانسـان ازادي تـر هغـه پـورې بشـپړېدلای نـه شـي تـر څو چـې لـه الله، دیـن او مذهـب او اخلاقو څخه ازادي تر لاسه نه کړي.

دغه راز په لبرالیزم کې دیني ازادي دامعنا چې فرد حق لري چې کله وغواړي یو دین پرېږدي او بل دین قبول کړي. لکه چې الله مه کړه یو څوك لـه اسلام څخه مرتد شي او مسـیحیت قبول کړي. یا یهودي، بودایي، بهایي، قادیاني پرویزي، او اغاخاني شي. هېڅوك حق نه لري او هېڅ شریعت او قـانون

کولی نه شي چې ددین په تبدیلي سره فـرد تـه سزا ورکـړي، یـا دمذهـب پـه تبدیلـي بندیـز ولـګوي. لکـه چـې کلـه پـه ۲۰۰۱م کـال دامریکـا تـور ښکـېلاك پر افغانســتان یرغـل وکړ او خپل جنایت کار فوځ یې پلی کړ او مسیحي دیـن تـه دعوت کوونکی جاسوسي انجیوز لکه شلتمړ ناو او داسې نورې په سـړه سـینه او ډاډمنـه تـوګه بېرتـه زمونـږ اسـلامي هـېواد افغانسـتان تـه ننوتـل نـو دامریکـا اسـلام دښمـن مشـر جـرج واکـر بـش وریپسـې جوخـت دا اعــلان وکـړ چــې بـاید پــه افغانسـتان کې دمذهب ازادي هرومرو ډاډمنه کړای شي.

۶ـ دبیـان ازادي: دلبرالیزم شپږم اصل دبیـان ازادي ده. په دې معنا هر فرد حق لـري چې څه پـه ذهـن کـې ولـري دهغـو اظـهار وکـړي او هغـه پـه ډاګه کـړي. هېڅوك او هـېڅ قانون حق نه لـري چې فـرد دمـافي الضمیر لـه اظـهار څخـه منعه کړي، ځکه چې دا دفرد او هر انساني توك پنځیـز حق دی. که څه هم هغه ددیني او اجتماعي اصولو په خلاف وي. او کـه څوك یــې منعـه کـوي بـاید دخپـل دغـه پنځیـز حق دترلاسه کولـو پـه تکـل پاڅون وکـړي، لـه دودیـز او مذهبـي اختنـاق څخـه ازادي لاس تـه راوړي. ځکـه چـې حق غوښتـل کېږي نـه بلکـې اخیسـتل کېږي. فـرد بـاید دبیـان، خبرو او وینا دازادي دحاصلولو له لیارې څخه ددینـي، مقدساتو او

قوانينو هر ډول بنديزونه او خنډونه لري کړي او د Dogmatism او تحکم پسندي د پوالونه پدي اړوندو نړوي او دخپل Rationalism نوي تولنه رامنځته کړي داسي تولنه چي د Libertinism اباحيت او Secularism سيکولريزم او لاديني پرخطوطو عياره کړی شي.

## ۷_ دانتقاد ازادي: دلبراليزم اووم اصل دانتقاد.

ازادي ده، او هغه داسي چي په مطلق ډول فرد حق لري چي انتقاد وکړي. سياسي انتقاد، ديني انتقاد، اجتماعي انتقاده مطلب داچي هر فرد حق لري چي هر ډول او په هرشي انتقادوکړي ځکه چي د Liberal democracy ليبرل ديموکراسي همدغه تقاضا ده چي فرد بايد له دغه حق څخه محروم نه کړای شي او هر فرد بايد خپل دغه حق احياء کړي.

داوه دلبراليزم تعريف، فلسفه، تاريخ او ډولونه، اصول او اهداف چي دلوېد يځ شيطان صفته تيورسنانو دانسانيت او انساني کرامت، دين، ايمان، اسلام، معنوياتو په خلاف او په ځمکه کي دالهي حاکميت الهي قوانينو او شريعت، په خلاف او داسلامي دمتدينو ځوانانو دبې لارتيا په تکل دنورو شيطاني ايزمونو په څنګ کي راوړي دي او په خپلو تبليغاتو سره يي دومره عام کړی دی چي افغانستان ته يي هم رارسولی دی.

## (په افغانستان کې دلبرالیزم ازموینه)

په افغانستان کې هم له نن څخه دمخه دلبرالیزم دترویج او پلي کولو تکل شوی دی خو په دغه نوم نه بلکې په نورو مختلفو نومونو لکه نوی اصلاحات، دیموکراسي اود اسې نور، څوکه وکولی شي دافغانستان مسلمان ملت په فکري توګه سیکولر او بې دینه کړی او دغه ازموینه هم په افغانستان کې څو پړاوونه لري چې دادي زمونږ دهېواد د مسلمانو ځوانانو دخبرتیا لپاره یې په لنډیز سره ذکر کوم:

## لومړی پړاو: اماني دوره:

په افغانستان کې دلبرالیزم پیلامه دامان الله خان دحکومت په موده کې دامان الله خان او دهغه دمېرمن ملکه ثریا او دهغه دخسر علامه محمود طرزي په ګډوهلو ځلو رامنځته کړای شوه او ددې لامل داو چې یو خو امان الله خان تحصیلات په ترکیه کې دکمال اتاترك دسیکو لرنظام په سیوري کې کړی وو چې له همدې امله کله چې امان الله له تحصیل څخه وروسته خپل هېواد افغانستان ته راستون شو، نو په بشپړه توګه لبرال او دسیکو لر ذهنیت څښتن و، دویم لامل یې دمحمود طرزي هغه پلانونه او مشورې وي چې دخپلې لورثریا په وزله یې امان الله خان ته ورکولی. او

علامه محمود طرزي دخپل لبرال ذهنيت په وجه امير عبدالرحمن خان جرمني ته په ډېر سپکاوي سره تبعيد کړی و. په جرمني کې محمود طرزی له يوې يهودې ښځې سره دويم واده کړی و چې له هغې څخه همدغه ثريالور يې پيدا شوی وه او بيا خپله دغه لور يې دجرمني په لبرال او سيکولر چاپېريال کې وروزله، همدغلته يې کله چې زده کړه پرې بشپړه کړه او بيا کله چې امير عبدالرحمن خان په ۱۹۰۱م کال کې وفات شو نو طرزی صيب دهغه دفاتحې په مراسمو کې دګډون په پلمه له خپل کهول سره هېواد ته راستون شو، او بيا څوموده وروسته يې ديو جوړشوي پلان له مخې خپله لور ثريا چې خور اځير که او لبراله وه امان الله خان ته واده کړه او بيا وروسته کله چې امان الله خان په ۱۲۹۷ش کې دکب دمياشتې په دريمه نېټه دشنبې په ورځ له ۱۳۳۷ ه دجمادي الاول له ۲۱ نېټې او د ۱۹۱۹ع کال دفروري له څلورويشتمې نېټې سره سم په کابل کې دخپلې پاچاهي اعلان وکړ نو ثريا ملکه ثريا شوه او محمود طرزي دبهرنيو چارو وزير وټاکل شو.

دريم لامل يې دامير حبيب الله خان په دربار کې دلبرالانو دهغه ګوند غړيتوب و چې د "حزب سری دربار" يعني ددربار پټ ګوند په نوم نومولی شوی و او دامان الله خان په ګډون دهمدغه ګوند غړو دامير دوژلو پلان جوړ کړ. څو په

افغانستان کې دلبرالیزم دترویج دلارې دغه لوی خنډ ختم کړی، هماغه و چې د ۱۲۹۷ش دکب دمیاشتې په لومړۍ نېټه دپنجشنبې په شپه دشپې درې بجې امیر حبیب الله دلغمان په کله گوش کې وویشتلی شو. امان الله دخپل پلار قتل ته محمود طرزی هڅولی او رضا مند کړی و، ځکه چې هماغه ددرباري لبرالانو دسري گوند رئیس او دسراج الاخبار افغانیه چلوونکی وو، او دهمدغه اخبار په دفتر کې به دنومورې گوند غړو غونډې کولې او دازادۍ لپاره یې پلانونه جوړول. عبدالرحمن لودین هم دهمدغه گوند غړی و چې په ۱۲۹۶ش کال کې دکابل په شور بازار کې یې دامیر حبیب الله خان په موټر ډزونه کړي و چې خطا ولاړل. او بیا نو موړی ونیول شو.

په هر صورت کله چې امان الله خان په خپله دخپلې پاچاهي اعلان وکړ په دغه مهال کې نوموړی ۲۷ کلن ځلمی و، دځواني دجذباتو په پایله کې او دلبرالستانو دخوشالتیا او داروپایانو، روسي بالشویکانو او کمال اتا ترک دنظامي او مادي گټود تر لاسه کولو او دافغانتسان دپرمختگ په تکل سیاسي ازادي، تعلیمي ازادي او دیني ازادي یې اعلان کړی مگر دبیان ازادي هماغسې مختنقه وه. ځکه چې دافغانستان متدینو او دسیاسي لرلید مفکرینو اجازه نه ورکوله چې دده غیر اسلامي لبرالي اصلاحاتو ته

ګوتنیونه وکړي چې جوته بېلګه یې په لاندې ډول ښودلی شو:
امان الله خان د ۱۳۴۶هجري لـه ۱۳۰۶ش کـال دلینـدۍ دمیاشـتې پـه اتلسـمه نیټه د ۱۹۲۷ع کـال ددسـامبر لـه میاشتې سره سم دخپل مشروطه سلطنت په نهم کـال لـه خپلې مېرمن ملکه ثریا سره داروپایي هېوادونو په سفر د قندهار کويټې له لارې هندوستان ته لاړ او بیا له هغه ځایه دبمبیې په سمندري لار دمصر پورټ سعید او بیا اروپا تـه لاړ او شپږ میاشتې او دولس ورځې یې په لنـدن، برلیـن، پاریس، انقره او مسکو کې تېرې کړې. په داسې ډول چې نه خو دده او نـه دملکـه ثریـا لبـاس او کـړه وړه دافغانسـتان داسلامي ملت انځور ګروو بلکې ددواړو لباس، ناسته ولاړه او بڼې اروپایي وې او دهغـوی پرمـوډ برابـر وو. لـه ګیـرې اسلامي او افغـاني لباس، عقیـدې او روایاتو څخه بېخـي ازاد وو.
امان الله خان ددې پرځای چې بیت الله ته تللی وای دحـج او عمرې فریضـه یې اداء کړې وای او اسلامي هېوادونـو تـه یې سفرونه کړي وای او لـه مسلمانو سیاست پوهانو دهغـه وخت سره یې دافغانستان اسلامي تشخص دساتلو په چوکاټ کې دننه دپرمختګ لپاره مادي او معنوي کومکونه غوښتي وای اسلام دښمنو صلیبیانو، یهودیانو او کمونستانو تـه لاړ او

هغوی داسې مشورې ورکړې چې دامـان الله خـان دواکمنـې دختمېدولامل وګرځېدی او هغه داوي:

کله چې په ۱۳۰۷ع دچنګابښ په لومړی نیټه دهرات لـه لارې هېواد تـه راستون شـو نـو زمونږ مسـلمان ملت تـه یـې لـه انګلستان ژنیو، سـویس، ایټالیـا، بلژیك، فرانسې، المـان او روس څخـه دلبرالـیزم، سـیکو لریـزم او کمونـیزم ګڼ پـلان دریفورم په نوم راوړ چې یو څو مادي یې په لاندې ډول دي:

**۱_ دګډا نڅا او فحشاء کلبونه:** امان الله خان په کابل کی د ۱۳۰۷ش دسنبلې په میاشت کی دکلوب سیاه، وسرخ اوسبز په نوم یو کلوب جوړ کړ چې په افغانستان کې دسـاز، سـرود، ګډا، نـڅا او فحشـاء لومـړی حکومتـي او سرکاري مرکز و، چې په حقیقت کې دغربي تهذیب او لبرالیزم پایګاه وه چې دامان الله خان ریفارمر له پلوه افتتاح شوه.

**۲_ بې حجـابي:** دویم سـوغات یـې لـه غـرب څخـه دافغانستان معصومو مومنو مېرمنو تـه بېحجابي راوړ، او دغه لبرالي اصل یې لومړی پخپل کـهول تطبیق کړ او هغـه داسې چې د ۱۳۰۷ش کال دوري دمیاشتې پـه نهمـه "۹" نیټه خپله مېرمن ملکه ثریا یې دلویې جرګې غونډې ته بـې حجابه راوسته، څو نور په دې روند دده په پل قدم کېږدي.

او له هماغې ورځې څخه يې ښځو ته اعلان وکړ چې څادري "برقع" به نه پرسرکوي.

**۳ـ په جبري توګه دريشي اغوستل:** امان الله خان اعلان وکړ چې هر څوك به هرومرو دريشي اغوندي او هر افغان چې په ښار کې بې دريشي وليدلی شي او ملي لباس يې اغوستی وي هغه به دحکومت له پلوه جريمه کولی او له ښار څخه به شړلی شي.

**۴ـ په شرعي سلام بنديز لګول:** دافغانستان لبرال پاچا امان الله په شرعي سلام اچولو بنديز ولګاوه او د السلام عليکم، وعليکم السلام کليمات ويل يې منعه اعلان کړل او هغه يې ارتجاعي عمل وګاڼه او حکم يې وکړ چې کله دوه مسلمان افغانان سره مخامخ کيږي نو دسلام پرځای به دواړه يو بل ته خولې له سر څخه اوچتوي او يو بل ته به دانګريزانو په شان خپل سر ښکته کوي. يعنې يو بل ته به سجده کوي.

**۵ـ ددستار تړلو ممانعت:** امان الله خان اعلان وکړ چې هېڅوك به هم عمامه(پګړۍ) نه پر سر کوي. يا به لوڅ سر ګرځېږي او يا به انګرېزي خولې پر سر کوي.

# دلبراليزم تعريف

"Liborulism" لاتيني کليمه ده چې له "Liber" څخه اخيستلى شوې ده چې دلغت په لحاظ دفردي اصالت او فردي ازادي په معناوو راغلې ده. او اصطلاحي تعريف يې لبرالستانو داسې کړى دى: ليبرپردى باندې ګروهه او عقيده لرل چې انسان دنيا ته ازاد راغلى دى او په مطلق ډول ټولواك دى او څه چې وغواړي په خپله خوښه ازاد ژوند وکړي. هېڅوك او هېڅ طاقت هم دا حق نه لري چې دکوم قانون په ذريعه دفرد ازادي ورڅخه سلب او غصب اويا محدوده کړى. دا دفرد حق دى چې بربنډ ژوند کوي او که لباس اغوندي، دا دفرد حق دى چې له هرې لارې وغواړي دولت وګټي، او هر ډول سياسي نظام وغواړي ځان ته يې غوره کړي، او هر ډول چې وغواړي عقيده او فکر ولري. د بيان او فکر ازادي ولري. دارادې او تصميم نيولو ازادي ولري، مطلب دا چې فرد مطلق ازاد پيدا شوى دى او بايد په هر اړخيزه توګه ازاد وي په عقيده کې په اراده کې په کړو، وړو کې او په ژوند کولو کې. او په ناسته ولاړه کې او دغې مفکورې او مکتب ته لبرالېزم او ددغه فکر خاوندانو ته لبراليستان ويلى کېږي.

*تاريخ:* لبرالېزم په اتلسمه پېړۍ کې يعنې له نن څخه دوه سوه شپږ ويشت کلونه دمخه په ۱۷۷۶ مسيحي کال کې دغه مفکوره منځته راغلې ده، چې په همدې اساس د "Humanism" هيومانيزم يعنې انسان پرستي او Liberalism لبرالېزم يعنې

**۶_ دړیرې خرې یلو شرط:** دعسکري او نظامي او نورو ملکي مامورینو او منسوبینو لپاره یې دړیرې خرې یل شرط او لازمي وګرځول. پداسې حال کې چې په اسلامي شریعت کې دړیرې پرېښودل واجب دي.

**۷_ پرقرض ورکولو بندیز لګول:** امان الله خان دریفورم په نظامنامه کې له پور ورکولو او قرض حسنه څخه ممانعت کړی و او حکم یې کړی و چې ددغه فرمان له اعلان څخه وروسته به په خپل منځ کې یو بل ته قرض ورکول یا له حکومت څخه قرض تر لاسه کول ممنوع وي پداسې حال کې چې چې داسلام دسپېڅلي دین په اجتماعي اخلاقي نظام کې دخپل منځي تساند او تساعد ممتاز او غوره خصلت یو بل ته قرض ورکول دی. او په قران کریم کې الله تعالی په یوولسو ایاتونو کې یو بل ته په قرض ورکولو تشویق کړی دی. خو امان الله خان ددغه الهي حکم په خلاف فرمان جاري کړ او دافغانستان مسلمان ملت ته یې اعلان وکړ چې که چا له دی څخه وروسته یو بل ته قرض حسنه ورکړ نو سزا به ورکولی شي.

**۸_ دشراب څښلو دسزا معاف کول:** امان الله خان اعلان وکړ او دافرمان یې صادر کړ چې دشرابو په اړوند هر ډول سزا ګانې معاف دي. یعنې څښونکی، جوړوونکی،

شراب پيرودونكى هېڅ يو ته به هم سزا وركولى نه شي او هر څوك پدې هكله ازاد او خپلواك دي.

**۹_ پر ديني عالمانو بنديزونه لګول:** امان الله خان پر هغو ديني عالمانو دخطابت، امامت، درس او دتدريس پركولو بنديز ولګاوه چې دهندوستان د ديو بند دار العلوم برى ليك او علمي سندبه يې لاره، دغه راز په دغه فرمان كې يې داهم ويلي و چې هېڅ يو ديني عالم دحكومت له اجازت نامې پرته خطبه او خطابه وركولى نه شي.

**۱۰_ هجري قمر سنه پرشمسي بدلول:** په دغه اصلاحي نظامنامه كې امان الله خان فرمان صادر كړ چې له دغه فرمان وروسته به دهجري قمري سنې پرځاى هجري شمسي سنه استعمالولى شي.

افغانستان ته داسلام دمبين دين له راتګ څخه يعنې له ۳۷هـ څخه تر ۱۳۴۷هـ پورې دالومړى ځل و چې په افغانستان كې دهجري قمري سنې ليكل منعه كړاى شول.

**۱۱_ دامر بالمعروف او نهي عن المنكر بندول:**

دافغانستان ځوان ۲۷ كلن پاچا په خپله اصلاحي نظامنامه كې په امر بالمعروف او نهي عن المنكر هم بنديز ولګاوه، ځكه چې دا دلبراليزم خلاف و، وګړي بايد ازاد پرېښودل شي چې هر څه كوي دچا پرې څه كار؟!.

پداسې حال کې چې امر بالمعروف او نهې عن المنکر دالله تعالی له پلوه خپلو بندګانو او بشریت ته دیو لك ځلېریشت زره انبیاوو بنستېیزه دنده او داسلام دمقدس دین روح او چورلیځ دی.

په دغه نظامنامه کې دغه ډول نوري هم ددین او مذهب په خلاف مادي اعلان کړای شوی وي چې شمېر یې اته دېرش بنودلی شوی دی، او ددیني ریفورمونو دغه نظامنامه امان الله خان د ۱۳۰۷ دتلي دمیاشتې په پنځلسمه نېټه دکابل دستوري په ماڼۍ کې اعلان کړه.

یادونه: دامان الله خان دلبرالیزم په اړوند دخندا وړ خبره خو داده چې زمونږ دهېواد معاصر نامتو پیاوړی لیکوال او لبرال ادیب حبیب الله رفیع صیب په خپل کتاب داستقلال څلورمه جبهه کې له یو پلوه دامان الله خان په دغو اصلاحاتو نیوکه کړې ده او هغه یې داسلام او ملي کلچر خلاف ګڼلی دی. او له بل پلوه یې بیا بیا ویلي دي چې امان الله خان کروړلی هوډ نیولی و چې اسلامي خلافت بېرته اعاده کړي. زه وایم ایا داسې یو څوك چې په ډاګه دقران او سنت په خلاف پورتنې فرمانونه جاري کوي او داسلامي هېوادونو دسیاسي حاکمانو پرځای له انګرېزانو المانیانو او مارکسستو روسانو او د اسلام ددین له غټ دښمن کمال اتاترك څخه مشورې او هدایات تر لاسه کوي او خپله ښه، لباس، او ژوندود یې غیر شرعي وي هغه به څرنګه داسلامي خلافت داعادي تکل وکړي؟! داخبره نه منونکې او غولونه ده.

# غبرګون

دافغانستان دمسلمان ملت او امان الله خان تر منځ ددینې ریفورمونو نظامنامې جاری کولو او علان لوی واټن رامنځته کړ او دغبرګون په توګه دلبرال سیکولر پاچا دنظامنامې په خلاف په جنوبې او شمالې افغانستان کې دعلماوو پر فتوی قیامونه پیل شول، دافغانستان دینپالو خلکو دامان لله خان په خلاف جهاد اعلانکړ او دامان الله دبیرو کراسې ددفاع وزیر محمد نادر خان له خپلې دندې څخه مستعفی شو او له خپل مشر ځوی محمد طاهر خان څخه پرته له خپل کهول سره فرانسې ته لاړ. امان الله خان دملې پاڅون په وړاندې ټینګ نه شو اوپه ۱۳۰۷ ش کې د مرغومې په ۲۴ د ۱۹۲۹م کال دجنورې له ۱۴ می نیټې سره سم له پاچاهې څخه مستعفی شو. او دهغه مشر ورور معین السلطنة سردار عنایت الله خان دچارو واګې په لاس کې واخیستې. او امان الله خان قندهار ته لاړ او بیا له درې ورځو وروسته عنایت الله خان هم په ۱۳۰۷ش کال کی دمرغومې "جدې" په ۲۷ مه نیټه دسپین بولدك په لاره وتښتېده او دانګلستان له لارې ایټالیې ته لاړ او هېواد یې دجنګونو داورونو په لمبو کې پرېښود.

په کابل کې دسیاسي قدرت دخلا په دغه مهال کې، لـه دې امله چې دشمال دپروان ولایت دجنگ جبهـه ورتـه خیرمـه او کابو، وه چې دحبیب الله کلکاني په قوماندهٔ دامان الله خان دلبرال حکومت په خلاف جنګېدله او ارګ یې کلابند کړی و په ۱۳۰۷ش کې دمرغومي دمیاشتې په ۲۸ نېټه حبیب الله کلکـاني چـې دسـقو پـه زوی مشـهور و پـه ډاډمنـه او مفتوح فضاء کې شاهي ارګ ته ننووت، دسلطنت ټوپل یې پرسر کېښود دخپلې پاچاهي اعـلان یې وکړ او دامـیر لقب یې پر ځان کېښود. په داسې حال کې چې دشرعي امارت له پنځلسو شرطونو څخه خورا مهم شرط چې علـم دی ورپکې نه و ځکه چې حبیب الله کلکـاني انپړ او بې علمه و او لـه لیك لوست څخه محروم و.

حبیب الله کلکاني قدرت ته په رسېدو سره د امـان الله خـان ددینـي ریفورمونـو دنظامنـامې پـه ګډون پنـځه پنـځوس نظامنامې او هم اساسي قانون ملغی اعلان کړی او ځان تـه یې دخادم دین رسول الله لقب هم ورکړ او داژمنه یـې اعـلان کړه چې په افغانستان کې بـه سوچـه شرعي نظام راولـي، مګر داممکنه ځکه نه وه چې دحبیـب الله کلکـاني لکه چې لـه حکومتـي پرسونل څخـه یې جوتـه وه دحکومت ډول یـې و، او پـه سیاسـي اصطـلاح کـې موبوکراسـي Mobocracy هغـه حکومتـي نظـام تـه ویلی کېږي چې چلوونکـی یـې

اوباش، بازاري او دهیڅ قانون منونکی نه وي. دحبیب الله کلکاني زیاتره ملګري دهمدغو مواصفاتو لرونکي وو، چې له همدې امله په کابل کې مطلق Anarchism حاکم شو، الغاوتلغاو جوړ شو، دکابل په ښار کې دپښتنو عام قتلان وکړی شو چې په هغو کې د محمد نادر خان شهید ځوی او دمحمد ظاهر خان مشر ورور محمد طاهر خان هم و، لومړی بندي کړای شو او بیا ووژلی شو، دکابل په ګردو رسمي دوائرو کې دپښتو په لیکلو او په پښتو ژبه په خبرو کولو بندیز ولګولی شو، دښاریانو امنیت له منځه لاړ دهیچا مال، سر او ناموس محفوظ نه و. او پوره اته میاشتې او پنځه ویشت ورځې دکابل مظلوم او بې دفاع وګړي دانارشیزم "ګډوډي" په اور کې سوځېدل.

په کابل سربېره دافغانستان په ولایاتو کې هم اداري ګډوډي رامنځته شوه، او بیا په خاصه توګه په شمالي نهه ولایتونو دترکستان او قطغن کې، قومي او لساني جنګونه پیل شول، دحبیب الله کلکاني دلنډ مهاله سیطرې چې سقاوي دوره ورته ویلی کېږي ملوك الطوائفی منځته راغله ان تر دې چې په خپله د حبیب الله کلکاني نائب السلطنة سیدحسین چې د نومـوړی پـه څیر نالوستی و، د حبیب کلکانی له موبو کراسي نظام څخه په ګټه اخیستلو کله چې دقطغن پلخمري ته دشورشونو دکرارولو لپاره ولېږلی شو

هلته يې خپله پاچاهي اعلان کړه او په خپل نوم يې سيکه چاپ کړه او دا لاندې بيت يې پرې ليکلی و:

میکنم دیوانگي تا بر سرم غوغا شود

سیکه برزر میزنم تا صاحبش پیدا شود

هماغه و چې محمدد نادر خان دخپلو ورونو شاه ولي خان، محمد هاشم خان، شاه محمود خان او محمد عزيز خان په ګډون دهېواد دنجات لپاره د ۱۳۰۷ کال دکب په مياشت کې د ۱۹۲۹م کال دمارچ په ۸ مه نېټه له فرانسې څخه دهندوستان له لارې دهېواد جنوبي سيمې ته داخل شو او له هغه پلوه يې پر کابل يرغل وکړ او د ۱۳۰۸ کال دتلې دمياشتې په ۲۵ نېټه د ۱۹۲۹م کال داکتوبر له ۱۵ نېټې سره سم دکابل ارګ ته ننوت او دخپلې پاچاهي اعلان يې وکړ او بيا د ۱۳۰۸ کال دلړم دمياشتې په يوولسمه د ۱۹۲۹ کال دنوامبر له دويمې نېټې سره سم يې حبيب الله کلکاني دهغه دکابينې داوولسو "۱۷" کسانو په ګډون په ارګ کې دننه په داروځړاوه. او بيا يې پګې دلړم په ۱۲ په حضوري چمن کې وځړولی. او دسرونو هغه ځلی "مناره" يې رنګ او په ډېر درناوي يې دفن کړل چې حبيب الله کلکاني دپلخشتي جومات په مخه کې دخپلو مخالفينو له سرونو څخه جوړ کړی و. چې پدې توګه يې مطلقه شاهي بېرته اعاده کړه. محمد نادر خان ځومره چې په جنګي فنونو کې ماهرو، دتل او وانه فاتح و، له هغه څخه زيات دسياست په چلبازيو کې په زړه پورې وارد و.

# دویم پړاو: ظاهر شاهي دوره:

په افغانستان کې د Liberalism دویم پړاو دمحمد ظاهر خان له پاچا کېدو سره سم پیل شوی و. او په افغانستان کې دلبرالیزم دغه دور خورا طولاني دور ګڼلی کېږي. ځکه چې له ۱۳۱۲ش کال دلړم دمیاشتې له ۱۷ څخه د ۱۹۳۳م کال دنوامبر له ۸ مې نېټې څخه پیل او تر ۱۳۵۲ش دچنګاښ دمیاشتې ۲۶ مې د ۱۹۷۲ کال دجولای تر ۱۷ مې نېټې پورې یې دوام وکړ.

که څه هم دښاغلي محمد نادر خان له پاچا کېدو سره سم اماني لبرالیزم احیاء او پلي کړای شو، بلکې له دین څخه دازادۍ په پروسه کې محمد نادر خان له امان الله خان څخه یو قدم وړاندېوالی وکړ، او هغه داسې چې دخپلې پاچاهي له اعلان سره سم یې ځان دامیر له لقب څخه ازاد کړ او ځان ته یې داعلي حضرت لقب غوره کړ پداسې حال کې چې داعلي حضرت صفت یوازې او یوازې دالله تعالی صفت دی د بل هیچا لپاره هم دحضرت او اعلی حضرت صفت استعمالول شرعا روانه دي، مګر هغه دامیر له نوم څخه چې یو اسلامي لقب دی کرکه کوله او ځان یې ورڅخه ازاد کړ، او نور دامان الله خان لبرالیزم یې قدم په قدم په عملي ډګر کې پلي کاوه خوله دې کبله چې ښاغلی محمد نادر

خان خورا ځیرك او دافغاني جامعې په نبض پوه و او Cnse Vatliberali یعنې کنسرواتیف لبرال و، دامان الله خان په شان دلبرالیزم دترویج او پلي کولو په اړوند پر Dogmatism ډوګماتیزم ګروهمن نه و.

محمد ظاهر خان چې دخپل عمر په نولسم(۱۹) کال پاچا کړای شو او هم یې خپلې لومړنۍ او منځومې زده کړې دفرانسې په NOS نیس ښار کې تر سره کړې وی اوله هغه ځایه هیواد ته لیبرال راغلی و، دولس د احساساتو او غبرګون پروایي نه کوله په پرانیستې مټ یې په هوډمنه اراده په افغانستان کې دلبرالیزم پلي کولو ته ملاوتړله. او په عملي توګه یې دامان الله خان ددینی لبرالیزم داعلان کړیو او بیا خپله دهغوی دمنسوخ کړیو مادو داحیاء کولو پریکړه وکړه. مګر دمحمد ظاهر خان کاکا سردار محمد هاشم خان چې د هغه دحکومت لومړی وزیر هم و او په سیاسي چارو پوه محافظه کار و، دمحمد ظاهر خان دلبرالیستي ارادو مخه ونیوله او پر هغه باندې یې دالمتوکل علی الله لقب کېښود، او بیا کله چې سر دار محمد هاشم خان په ۱۳۲۵ کال کې دغوایي دمیاشتې په ۱۹ دصدارت له دندې څخه مستعفی شو او دمحمد ظاهر خان بل کاکا سردار شاه محمود خان چې تر دغه مهاله دجنګ وزیر و دصدارت پردنده وګومارل شو بیا خم سر

۱۳۳۲ش پورې شل کلونه دافغانستان عملي بیروکراسي دمحمد ظاهر خان ترونو چلوله. او کله چې د ۱۳۳۲ دوړي دمیاشتې په ۱۵ مه د ۱۹۵۳م کال دستمبر له ۶ مې نېټې سره سم سردار شاه محمود خان دصدارت له دندې څخه مستعفی شو او دمحمد ظاهر خان دکاکا ځوی سردار محمد داود خان ته دصدارت دنده اوسپارلی شوه دافغانستان په سیاسي تګلاره کې په داخلي او خارجي دواړو برخو کې انقلاب راغی. او دلبرالیزم دویم دور پیل کړای شو چې تر ۱۳۵۲ پورې ورځ په ورځ دمحمد ظاهر خان له پلوه کروړلی کېده. او دادی په افغانستان کې ددغه دور دلبرالیزم څو بېلګې په لنډیز سره دلته وړاندې کوم.

**۱ ــ دښځو بې حجابي:** په ۱۳۳۸ کال کې د اوړي په وروستۍ میاشت وږي کې د ۱۹۵۹م کال داګست له درویشتمې (۲۳) نېټې سره سم دافغانستان دبوروکراسي لومړی وزیر سردار محمد داود دښځو د بې حجابي اعلان وکړ، او دخپل حکومت ګردومنسوبینو ته دملکانو، اربابانو او ټیکنو کراټانو په ګډون یې حکم وکړ چې هر یو به خپله مېرمن لوڅ مخ پداسې حال کې داستقلال په جشن کې دګډون لپاره له ځان سره راولي چې صرف لنډې مونو ژوپ کمیس به یې اغوستی وي پرتوګ به یې نه

مطلقه فردي ازادي دواړه په يوه موده او يو تاريخ کې منځته راغلي دي. او په يو وخت کې دواړو ددين، اخلاقو او بشري کرامت په خلاف او اجتماعي فساد په خپرولو پيل کړی دی، او دفردي حقيقي ازادي د تحقق لپاره يې له دين څخه په هر اړخيزه توګه دبيزارتيا اصل وضع کړ او همدغه شرط يې دحقيقي ازادۍ لپاره ضروري وګاڼه. لکه چې دلبراليزم دمفکورې يومخکښې Zenpalsachtch ژيپال ساخ تخ اعلان کړی و او په هغه کې يې ويلي دي:

"انسان تر هغه پورې ازادي تر لاسه کولی نه شي تر څو پورې چې دالله تعالی له منلو. مذهب او اخلاقو څخه بېزارتيا خپله په ډاګه اعلان نه کړي او دانسان Divinity الوهيت او Holiness تقديس دزړه له کومې قبول نه کړي"[1]

## بنسټ کېښودونکی او دتبارز لومړۍ سيمه:

د لبراليزم لومړی بنسټ کېښودونکی دانګلستان داتلسمې پېړۍ نامتو سيکولرفيلسوف جرمي بنتهام هيوم دی. او ددغه فلسفي مکتب دتبارز لومړۍ سيمه دنړۍ دفحشاوو او فجائعو له ګردو څخه لوی بشر دبنمنه بنکېلاکي هېواد

[1] سير حکمت دراروپا ج۳/ص۱۵۳ محمد علي فيلسوف نماها ص۲۳ناصر مکارم مذهب اوساينس ص ۳۴۲.

وي، بلکې صرف اوږدې ګوشتې جورابې به يې تر پونديو پورې پښو ته اغوستې وې، دسرونو وېښتان به يې ياترغوږو نو پورې لنډ کړي وي او يا به يې دسر پر ککرۍ غونډ او ګونبذه کړي وي: متخلفين به سر بېره پردې چې له رسمي دندې څخه لرې کولی او بر طرف کولی شي دحکومت له پلوه به سخته سزا هم ورکولی شي، او دغه فرمان دګردو رسمي او حکومتي پاټکيو او کار کوونکو لپاره دی.

دلبراليزم ددغه اصل دجبري فرمان په وزله دعملي کولو له اعلان سره سم دغبرګون په توګه دقندهار په دين مين ولس پاڅون وکړ چې د داود خان په حکم جنرال خان محمد خان په بې رحمانه توګه وځاپه او په کرار يې کړ او د الومړی ځل و چې جنګی ټينګ د خپل ملت په خلاف استعمال کړی شو او ددفاع په اراده د ملت په پيسو پيرودل شوی ټينګ د ملت سينی غلبيل کړی، او ددې لپاره چې دافغانستان په نورو سيمو او ولاياتو کې قيامونه ونه شي دهر ولايت ستر ستر ديني علماء يې بنديان کړل چې دهغو له جملې څخه مولوی فيض محمد دلوګر داوني سيدانو خطيب، مولوي ګل محمدشهيد دلوګر ولايت دکلنګار چې دمزار په اسديه کې په هغه وخت کې مدرس و. مير عبدالستار دلوګر ولايت دمغل خېلو، مولوي صيب مسکين دپروان ولايت

دفرضي، دلغمان دولايت دکجري ملاصيب. مولوي داد محمد خان دبلخ ولايت دچمتال اوسېدونکي او داسې نور. سردار محمد داود خان او محمد ظاهر خان پاچا په نسبي ډول دبې حيايي په دوو کولو کې بريمن شول، او هغه داسې چې صرف په معارف او دولتي دوائرو کې کار کوونکې ښځې بربنډې او نيمه عرياني کړای شوې او سوکه سوکه ځينې خلک ورسره روږدي او بې تفاوته شول او دلبراليزم دښځو دازادي دغه اصل په افغانستان کې تر . پورې يوازې په ښارونو کې په ځينې کورونو کې ددود شوی و.

## ۲ داساسي قانون جوړول:

دلبراليزم په لوري دمحمد ظاهر خان دويم قدم داساسي قانون جوړول و. او هغه داسې چې په ۱۳۴۳ کال کې دغوايي په څلېريشتمه د ۱۹۶۴ کال دمې دمياشتې له څوارلسمې نېټې سره سم محمد ظاهر خان دبشري قوانينو دقانون پوهانو يوه جرګه کې جوړه کړه او داساسي قانون په جوړولوېې وګومارله. قانون يې جوړ کړ لويه جرګه يې دايره کړه او د ۱۳۴۳ کال دوږي په ۱۸ د ۱۹۶۴ کال دستامبر له نهمې نېټې سره سم يې اساسي قانون پرې تصويب کړ او د ۱۳۴۳ کال دتلې دمياشتې د ۱۹۶۴م کال داکتوبر له لومړۍ نېټې سره سم محمد ظاهر خان پاچا تو شيح کړ، او

دمحمد ظاهر خان په هدایت په دغه اساسي قانون کې یوه ماده داسې لیکلی شوې ده:

**((شاه محمد ظاهرخان)) غیر مسئول او له اعتراض څخه مصئون دی))**

یعنې دافغانستان پاچا محمد ظاهر خان چې هر څه خوښه وي هغه کولی شي هېڅوك هم دنیوني او اعتراض کولو حق پرې نه لري او نه دچا په وړاندې مسئول دی او هېچاته هم دخپلو کړو، وړو ځواب ورکوونکی نه دی.

د محمد ظاهر خان دلبرال توب دغه اصل بې ساري او په بشریت کې بې سیاله دی. ځکه چې داخبره دالوهیت او ربوبیت هغه دعوه ده چې په یوه زمانه کې دمصر پاچا رعمسیس خلکو ته په ۵۰۰ قبل مسیح کې ویلي وو چې "أنا ربکم الاعلی" زه ستاسې لوی رب یم. خو محمد ظاهر خان دغه دعوی په بل شان کړې ده او له الله تعالیٰ سره یې په بل صفت کې خپل ځان شریك ګرځولی دی. ځکه چې یوازې د الله تعالی ذات غیر مسئول او له اعتراض څخه مصئون دی لکه چې فرمایلي یې دي:

"لایسئل عما یفعل وهم یسئلون"[1]

---

[1] دانبیاء سوره ۲۳ ایت ۱۷مه سپاره ۲۱ سورت.

نه پوښتېدلی کېږي "الله" له هغو شيانو چې کويي (ځکه چې الوهيت يوازې دده صفت دی. او دوی تول پوښتېدلي کېږي ددوی له افعالو، احوالو او اقوالو څخه ځکه چې دوی مخلوق اوداللّه مملوك دی.

او همدا رنګه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي:

"عن عبدالله بن عمر ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: الاكلكم راع وكلكم مسئول عن رعيته، فالامير الذي على الناس راع عليهم وهو مسئول عنهم، والمرأة راعية على بيت بعلها وولده وهي مسئولة عنهم والعبد راع على مال سيده وهو مسئول عنه فكلكم راع وكلكم مسئول عن رعيته"[1]

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: خبردار شئ هر يو ستاسې څارونکی ذمه وار دی او دخپل رعيت مسئول دی. نو هغه امير حاکم او پاچا چې پر خلکو باندې حکومت کوي هغه پرې څارونکی او ساتونکی دی او هغه دخپل رعيت په اړوند مسئول دی. او ښځه دخپل مېړه دکور او دهغه داولاد ذمه واره ساتونکې ده او دهغوی په هکله مسئوله ده. او خادم او نوکر دخپل بادار دمال ذمه وار

[1] ابو داود ج۲ ص ۴۸۴ کتاب الخراج والفئ و الامارة. باب مايلزم الامام من حق الرعية

ساتونکی دی، او دهغه په باره کې مسئول دی. نو هر یو ستاسې ځارونکی ذمه وار دی او دخپل رعیت په اړوند مسئول دی او پوښتنه به یې ورځخه کولی شي.
د اسلام حکم خو دا دی چې له الله تعالی ځخه پرته هر څوك دورسپارل شوي دندې مسئول دی. تر دې چې أنبیاء کرام علیهم الصلاة والسلام هر یو دخپل امت په باره کې مسئول دی . پرېښتې د خپلو ورسپارل شویو دندو مسئولي دی الله تعالی ته. خو زموږ لبرال پاچا محمد ظاهر خان په خپل اساسي قانون کې دامادہ تصویب او دخپل ځان لپاره توشیح او اعلان کړه چې دیٔ غیر مسئول او له اعتراض ځخه مصئون دی.

## د تولواك او خپلواك صفتونه کېښودل:

دافغانستان لبرال پاچا محمد ظاهر خان داساسي قانون له اعلان او نفاذ ځخه وروسته د المتوکل علی الله اسلامي لقب هم له خپل نوم ځخه لرې کړ، ځکه چې له غیر مسئول توب سره تضاد لري او ددغه لقب پر ځای یې ځان ته دالله تعالی دوه نور صفتونه غوره کړل چې یو تولواك دی. یعنې دهر څه مالك، دژوند او مرګ، دتعمیر او تخریب دکایناتو مالك، دپیداکېدو دمخلوقاتو او دفناء مالك، دنېکي او بدي مالك. دچا دفقیر ګرځولو او چا دغني ګرځولو مالك،

دازل او ابد مالك، دشپې او دورځې دراوستلو او بيولو، واکوال، دکاختي دراوستلو او لـه منځه وړلو مالك، داورښت او رولو او وچکالی واکمن، دنارينه او ښځې پيدا کولو او ښځي شنډ ګرځولو مالك، دچا دپاچا او د چا دګدا ګرځولو اختيار او واك مالك، دشين کولو او وريځ راوستلو مالك دګرمي راوستلو او سړو راوستلو مالك دناروغتيا او صحت بخښلو واك، دتکليف او راحت ورکولو واك. مطلب دا چې په دنيا کې هر څه دی د هغو ګردو اختيار من او ټولواك کېدل يواځې دالله تعالی صفت دی. خو دغه صفت هم محمد ظاهر خان ځان ته غوره کړ نعوذ بالله. دغه راز خپلواك دامعنا چې فعال لما يشاء، پداسې حال کې چې دغه صفت هم يواځې دالله دی هېڅ يو څوك دالله لـه امر څخه پرته څه نه شي کولی خو ظاهر خان دالله تعالی دغه صفت هم ځان ته غوره کړ.

## ٣ـ ديموکراسي اعلانول:

په افغانستان کې دمحمد ظاهر خان په هاند دلبراليزم دبشپړ پلي کولو او دتکامل لپاره خپل دريم اوروستی قدم اوچتول دديموکراسي پلي کولو او دتکامل لپاره خپل دريم او وروستی قدم او چتول دديموکراسي اعلانول و. نوموړی داساسي قانون لـه اعلانولو او پلي کولو څخه وروسته په

عملي ډګر کې Democracy پلي کړه. که څه هم ددغه کفري او بدمرغه نظام اعلان په افغانستان کې په ۱۳۳۹ کې له ۱۹۶۰م سره سم کړای شوی و، مګر نه خو چاته دديموکراسي په هکله دليکلو اجازه وه او نه يې اصول پلي کړای شوي وو. ځکه چې په دغه موده کې سردار محمد داود خان ديکتاتور لومړی وزير و. خو کله چې محمد ظاهر خان په ۱۳۴۱ کال کې له ۱۹۶۳ سره سم دامريکا متحده ايالاتوته رسمي سفر وکړ او هلته يې وليدل چې خلك ټول له دين څخه لبرال ژوند کوي او بيا په ۱۳۴۲ کال کې له ۱۹۶۴ سره سم داکتوبر په مياشت کې دالمان او په ۱۳۴۳ کې له ۱۹۶۵ دفرانسې سفرونه وکړل غربي لبراليزم يې پرزړه او دماغو حاکم شو نو په همدغه کال کې يې دخپل اساسي قانون له توشيح څخه وروسته ديموکراسي له دين څخه دمطلقې ازادۍ په معنا په عملي ډګر کې په افغانستان کې پداسې ډول پلي کړه.

## الف: دشرعي حدودو او تعزيراتو تعطيل:

دديموکراسي په اعلان او تعميل سره ګرد شرعي حدود لکه د غل لاس غوڅول، دزناکار رجم کول، دمرتد وژل، قصاص، دشراب څښونکی په حد کول، دقذف په صورت کی دقاذف په حد کول. دغه راز ګرد شرعي تعزيرات که په

حقوق الله کې وي او که په حقوقو العباد کې وي معطل کول، ځکه چې دلبراليزم او ديموکراسي دحاکميت موخه داده چې جنايت هيڅ مفهوم نه لري او فرد ازاد دي چې هر څه يې خوښه وي هغه کولی شي، او هر څه يې چې خوښه وي هغه ويلی شي لکه چې يوناني فيلسوف ارسطومتوفی ۳۲۲ قبل مسيح په خپل کتاب ارغنون کې ويلي دي:
"دديموکراسي مرکزي هدف دفرد مطلقه ازادي ده"[۱]

**ب ـ دمفتيانو ختمول:** له ۱۳۴۳ څخه دمخه دافغانستان دګردو، ولاياتو په هره ولسوالۍ کې به دقاضي او ولسوال ترڅنګه دحکومت له پلوه په رسمي توګه مفتي هم ټاکلی شوی و څو په ديني او شرعي موضوعاتو کې دفيصلو په مهال کې له قاضي او ولسوال سره په شرعي فتوی ورکولو سره مرسته وکړي. او کله چې دښاغلي محمد ظاهر خان له پلوه ديموکراسی اعلان شوه او شرعی احکام معطل کړاي شو نو مفتيانو ته هم اړتيا پاتې نه شوه.

**ج ـ دمحتسب ختمول:** دښاغلي محمد ظاهر خان له پلوه په افغانستان کې دديموکراسي له منځته راوړو دمخه په هر ولايت کې به دحکومت له پلوه محتسب ټاکلی و، شرعي دره به ور سره وه او په کليو او بازارونو کې به

[۱]ارغنون ص ۱۳۱ فارسي ترجمه مترجم ډاکټر حميد عنايت.

ګرځېدل او دحکومت له پلوه به په رسمي توګه دنده ورته سپارلی شوې وه چې دسیمې دخلکو او دیني علماوو له شاهدي ورکولو څخه وروسته مفسدینو او بیلمازانو، چرسیانو، قیماربازانو، بنګیانو او نورو ناوړه چلند کوونکو، په تول او پیمانه کې ټګي او درغلي کوونکو سوداګرو او دوکاندارانو ته دجنایت سره وړ او مناسبه سزا ورکړي. چې دمحتسب له ویرې څخه به هر چا دجنایت، بد اخلاقي او بې حیایي له ارتکاب څخه ځان ساته، په کلیو او بازارونو کې به په هر اړخیزه توګه ولس ډاډه من دودیز ژوند کاوه. دظاهر خان ددیموکراسی له اعلان سره سم داحتساب شعبه هم ختم کړای شوه، څو موجوده او دافغانستان راتلونکی نسلونه ددیموکراسي تر سیوري لاندې سپین سترګي، بې حیاء، له اسلامي اخلاقو څخه بې برخې او شریعت او دیني شعایروته بې تفاوته لوی شي.

د_ مخلوط تعلیمي نظام: د افغانستان دیموکرات پاچا محمد ظاهر خان دخپلې دیموکراسي او لبرالیزم دتطبیق لپاره څلورم کارد او کړ چې دغرب مخلوط تعلیمي نظام یې پلي کړ، پداسې ډول چې په پوهنتون کې پېغلې نجونې او ځلمیانو هلکانو ګڼه زده کړه کوله یو هلك او یوه نجلۍ به څنګ په څنګ کېناستل او له درس زده کولو څخه به یې

زيات دجنسي مسايلو او عشقبازي خواله سره كول دمحرم او نامحرم شرعي حكم شاته وغورځول شو او دمحمود طرزي او امان الله خان فورمول ټكى په ټكي تطبيق كړاى شوه حياء او عفت په بې حيايي او بې عفتي تبديل شول، دغرب دګرل فرنډ او بواى فرنډ پروسه دود كړاى شوه. دزده كړې حقيقي موخه او مقصد تبديل شو. هغه نجلۍ او هلك ته دروڼ اندي خطاب وركړاى شو چې ديني بنديزونه يې شاته وغورځول او په بشپړه توګه غربي تهذيب ته تسليم شول او هغه نجونه او هلكان مرتجع وګڼل شو چې په نسبي ډول افغاني دود او اسلامي حياء او عفت ورپكې و.

دكابل په پوهنتون كې دساز او سرود، ګډا او نڅا پوهنځي جوړ كړاى شو او په رسمي توګه يې دحكومت له پلوه زده كړه كولى شوه او ډمانو ته هم ډيپلوم او برى ليكونه وركولى شول. تعليمي نصاب چينج كړاى شو، په لوړو زده كړو كې ديني مضمون لري كړاى شو، له روس، هند، امريكا او لوېديځو هېوادو نو څخه داسې استاذان استخدام كړاى شول چې دمسلكي ښوونو په ترڅ كې به يې محصلينو ته داسلام په خلاف دواليتر، كانټ، مالتوس او روسوسيكو لريستى او كمونيستى تيورى ديكته كولى، دهيګل، بنتهام او داروين فلسفي تيورئ به تدريسولې شوى.

برتانیه دی چې بیا په نولسمه پیړۍ کې ځینې نور فلاسفه او هم دلوېدیځ سیکولر فلاسفه لکه جیمزمیل، جان استوراټ مل Sturatmill متولد ۱۸۰۶م متوفی ۱۸۷۳ انګلیسي، توماس هیل ګرین هم دلبرالیزم مخکښان وو، او هم دلبرالیزم لمن له انګلستان څخه بهر ته هم وغځولی شوه، په فرانسه او المان کې تود هرکلی ورته وویلی شو ان تردې چې کله په ۱۷۸۹ کال کې په فرانسه کې ناپلیون بوناپاټ انقلاب رامنځته کړ نو په ۱۷۹۹م کې دفرانسې په پلازمینه کې درې سوه ښځو برېنډ لاریون وکړ او دښار په ګردو بازارونو کې وګرځېدې او دا شعار یې ورکاوه:

"مونږ دنیا ته له میندو څخه دغه ډول برېنډې او لغړې راغلې یو او همداسې برېنډې به ژوند کوو".

دا هغه ښځې وې چې دلبرالیزم دمفکورې او مکتب غړېتوب یې لاره او په عملي توګه یې لبرالیزم او فردي ازادي پر خپلو ځانونو تطبیق کړه او په خپل لاریون سره یې نه یوازې دفرانسوي ملت دښځو له ځانونو سره دملتیاهاندو کړ؛ بلکې په ګرده اروپا کې یې دلبرالیزم تحریك په حیرانوونکې توګه په ځپو کړ. منځ لارې وګړي او دکلیسا دعوت ګران یې له ماتې سره مخ کړل او هغوی ددغه طاغوتي توپان له تمکیدو څخه عاجز شول.

## هر اړخیزه ازادي:

دافغانستان دیموکرات پاچا ښاغلي محمد ظاهر خان فکر وکړ چې تر څو پورې په افغانستان کې لبرالیزم په بشپړه توګه پلي نه کړای شي دیموکراسي نه متحققه کېږي. نو له همدې کبله یې دلبرالیزم ګرد اصول پلي کړل او فرد یې په هر اړخیزه توګه ازاد وګرځاوه، داسې ازاد چې هېڅ دیني او افغاني دودیزې پولې او خنډونه او بندیزونه یې په لیاره کې نه وي، او دغه پورسه یې په لاندې توګه عملي کړه.

**فکري ازادي:** دفکر ازادي دلبرالیزم لومړی اصل دی چې ما دمخه تعریف کړی دی، په افغانستان کې ددیموکراسي سیاسي رژیم له اعلان سره سم هغه په زرګونو وګړو خپله فکري ازادي دسیاسي ګوندونو په جوړولو سره ډاګیزه کړه چې دامان الله خان دلبرال حکومت په دوره کې کله چې په ۱۲۹۹ش کې دکب دمیاشتې په لسمه د ۱۹۲۱م کال دفروري له ۲۸ سره سم داماني حکومت او دروس دکمونست رژیم تر منځ په روسیه کې ددوستي دتړون له لاس لیك څخه وروسته مرتد شوی و، او هم هاغه وګړی چې دامان الله خان سره یو ځای دغربي سیکولریزم په لمن کې غورځېدلی وو.

دروس پلوي، چين پلوي Communist ګوندونه او لوېديځ پلوي د Secularism ګروهمن ګوندونه په لاندې نومونو جوړ، او اعلان کړای شول او په فعاليت يې پيل وکړ ځو دافغانستان مومن او مسلمان ملت هم که وکولی شي دځانونو په شان دبېکېلاکيانو مريونه او مينځې وګرځوي او له افغانستان څخه داسلام دحق الهي دين پنځلس سوه کلن لرغونی له رحمتونو، نېکمرغيو او سعادتونو ډکه لمن تړوله کړي.

**دخلق ډيموکراټيک ګوند**: دغه ګوند دافغانستان دهغو دهريانو ملحدو کمونستانو وو چې دروسانو لپاره يې سياسي او فکري کار کاوه او دروس دکمونست سوسيال امپرياليستي رژيم له پلوه پردې باندې ګومارل شوی وو چې نور افغانان هم دځان په شان مرتد کړی او داسلام له حق دين څخه يې جار باسي.

دروس دغوځيره خوړونکو کمونستانو ته حکم کړای شوی و چې يو ګوند جوړ کړي او دهغه په وزله خپله کمونستي مفکوره په عوامو او خواصو کې خپره کړي، ددوی لومړی غونډه په کابل کې په ۱۳۲۹ کې له ۱۹۵۰م سره سم دسيد هاشم مساعد په کور کې شوی وه چې نور محمد تره کی، ببرك کارمل، مير اکبر خيبر، محمد اصف اهنګ پکې

ګډون کړی و او دګوند جوړولو ته يې تابيانيو لـه. خوشا محمود لومړی وزير پـه سياسـي ګوندونـو جوړولـو بنديـز لګولی و، له همدې امله کمونستانو پټ فعاليت کاوه.
کله چې دښاغلي محمد ظاهر خان لـه پلوه اساسي قـانون جوړ او ديموکراسي اعلان کړای شوه نو له ګردو څخه لومړی فکري او سياسي ګوند چې جوړ او اعلان کړای شو دروسې پلوه کمونستانو همدغه د خلق په نوم ګوند و چې د ۱۳۴۳ کال دمرغومي دمياشتې په يوولسمه (۱۱) نېټه لـه ۱۹۶۵ کال دجنـوري لـه لومړۍ نـېټې سره سم يې لومړۍ ګونـدي کنګره دنور محمد تره کي په کور کې جوړه کړه، دګوند نوم يې دخلق ديموکراتيك ګونـد کېښود، عمومي سکرتر تره کـی وټاکـل شـو دمرکزي کميټې غـړی او علي البدل غـړی وټاکلـی شـول چـې دغـه لانـدې کسـان وو: ببرک کـارمل، سلطان علي کشتمند، صالح محمد زيري، غلام دستګير پنجشيری، محمد طاهر بدخشی، نور محمد نور، ډاکټر شاه ولي، عبدالکريم ميثاق، سليمان لايق، محمد حسن بـارق شـفيعي، حفيـظ الله اميــن، اسـمعيل دانــش، عبدالحکيم شرعي جوزجاني، عبدالمجيـد او ظـاهر افـق قندهاری. او بيا يې په ۱۳۴۵ کې دوري دمياشتې پـه ۲۲ لـه ۱۹۶۶ کـال داپريل لـه ۱۱ نـېټې سره سم دخلق پـه نـوم جريده هم خپره کړه چې موسس يې تره کی او مسئول مدير

يې بارق شفيعي و چې ددوی دكمونستي او الحادي مفكورې انځور گره وه.

**دپرچم گوند:** دكارمل او تره كي ترمنځ په ۱۳۴۵ش له ۱۹۶۰ كال سره سم له دې كبله اختلافات راغی چې كارمل دهمدغه كال داولسي جرگې ددولت دبوديجې په بحث كې دپاچا خورا زياته ستاينه كړې وه چې له همدې امله نوموړی له گوند څخه تجريد كړای شو. نوموړی دلوينيد بريژنيف په امر په ۱۳۴۶ له ۱۹۶۷ سره سم د پرچم په نوم ځانگړی گوند اعلان كړ او بيايې په ۱۳۴۶ دكب دمياشتې په ۲۴ د ۱۹۶۸ دمارچ له ۱۴ نېټې سره سم دمير اكبر خيبر او سليمان ... په وزله دپرچم په نوم جريده هم خپره كړه او له پخواني كمونستي گوند څخه يې انشعاب وكړ.

**ستم ملي گوند:** داهم دروس پلوه كمونستي گوند دخلق له گوند څخه بيل شوي گوند و چې رئيس يې محمد طاهر بدخشی او مرستيال يې بحرالدين باعث و، طاهر بدخشی دپښتنو په مقابل كې كركه لرله او دايې عقيده وه چې دافغانستان وړوكی ملتونه لكه تاجك، اوزبك هزاره او نور پښتنو يرغمل كړي دي دهغو حقوق يې غصب كړي دي، له همدې امله نوموړي په ۱۳۴۵ كال كې انشعاب وكړ او پورتنی ځانگړی گوند يې اعلان كړ چې پدې ډول

دغه درې واړه کمونیستي ګوندونه دروس کمونیست ګوند تمویلول او دهغوی له هدایت سره سم یې په افغانستان کې په بېلابېلو نومونو داسلام په خلاف کار کاوه. دافغانستان دمسلمان ملت دنوي توکوم دبېلارتیا په تکل روسانو خپل دغه درې واړه فکري چینلونه فعال کړي وواو دهغوی څارنه نېغ په نېغه دروس جاسوسي شبکې کاجي بي کوله.

**دیموکرات نوین ګوند:** دافغانستان دلبرال دیموکرات پاچا محمد ظاهر خان دفکري ازادي دابلـه بدمرغه ډالۍ وه چې زمونږ ملت تـه یې ورکړه. دیموکرات نوین هم دکمونستانو ګوند دی چې په چین پورې تړلی دی.
دغه چین پلوه کمونست ګوند په ۱۳۴۷ش کال له ۱۹۶۸م سره سم یوه جریده دشعلهٔ جاوید، په نوم خپره کړه چې دامتیاز خاوند یې عبدالرحیم محمودي او مسئول مدیر یې هادي محمودي وو. نامتو غړی یې سر بېره په پورتنیو وګړو: محمد عثمان (لنډی) دکابل پوهنتون دساینس استاذ چې دلغمان داسلام اباد کلي اوسېدونکی و، عبدالمجید کلکانی، سیدال سخن دان دلوګرد حیصارك، عبدالاله رستاخیز، شبیر کندوزی، محمد ولي "ګاو" دکندز دشېرخان لیسې ښوونکی، دهغه پلار او دکهول ګرد غړی وه دیموکرات نوین په شعلهٔ جاوید سره مشهور و. دغه

چین پلوه ماویست مار کیست ګوند په افغانستان کې خپله مبارزه د اسلام په خلاف او د روس پلوه کمونستانو پر ضد متمرکزه کړې وه، چې له همدې امله یې ځینې مخکښان له روسي کمونستي کودتا ځخه وروسته د خلقیانو او پرچمیانو له پلوه ووژل شول چې په هغو کې د بد خشان د شعله یانو مخکښي بحرالدین باعث، د هرات د شعله یانو مخکښې عبدالاله رستاخیز او عبدالمجید کلکاني د پروان د شعله یانو مخکښې او اسدالله الماس وو. او نور یې پاکستان او ایران ته وتښتېدل او په جهاني تنظیمونو کې ننوتل. او هغه چې په افغانستان کې دننه پاتې شول د خپل فعالیت د تداوم لپاره یې د ګوند نوم تبدیل کړ او د "سازمان ازادي بخش ملي "ساما" نوم یې پرې کېښود. په پاکستان کې دراوا، او په المان کې یې دفازا، او ګوافزنومونه ورته ورکړل او اوس له همدغونومونو لاندې فعالیت کوي.

## جمعیت عوام: ((صدایی عوامی))

دغه ګوند هم چین پلوه کمونست ګوند و چې په کابل کې په ۱۳۴۷ کې له ۱۹۶۸ سره سم جوړ کړای شو. بنسټ کېښودونکی یې د هرات د زنده جان دولسوالۍ ډاکټر عبدالکریم فرزان و، د دغه ګوند مهم غړی ذبیح الله عصمتي او د هغه خور معصومه وردګ وو.

دغه چين پلوه کمونست ګوند صدايی عوام په نوم په پورتني تاريخ يوه جريده هم خپره کړه. مګر ددغه ګوند فعاليت خورا محدود و، چې له همدې امله دچين کمونست رژيم مالي مرسته ورسره ونه کړه او يوائې تر شعلهء جاويد پورې يې خپلې هر اړخيزې مرستې محدودې کړې چې تر اوسه پورې دوام لري، او جمعيت عوام سقوط وکړ او غړي يې په شعله جاويد کې جذب کړای شول. لکه څرنګه چې دبحرالدين باعث له مړينې وروسته دهغه ملګری هم شعله جاويد ته لاړل.

## لوېديځ پلوه Seculare ګوندونه

دافغانسان دديموکرات پاچا ښاغلي محمد ظاهر خان دلبراليزم دفکري ازادي له اصل په ګټه اخيستلو لوېديځ پلوه علماني او سيکولر وګړو هم له اسلامي فکر څخه دازادي اعلان وکړ او خپل سياسي ګوندونه يې جوړ کړل څو په بې ديني کې له کمونستانو څخه وروسته پاتې نه شي، غربي تهذيب او سيکولريزم ته خدمت وکړي. او که وکولی شي له کمونستانو څخه دافغانستان په بې دينه کولو کې مسابقه وګټي او هغو تنظيمونو په لاندې نومونو سره تبارز وکړ:

**افغان ملت:** دافغان ملت درسمي نوم سوسيال ديموكرات ګوند دی او دغه ګوند په ۱۳۴۴ش کال کې دکب دمياشتې په ۱۷ د ۱۹۶۵م کال سره سم په کابل کې جوړ او اعلان کړای شو. ددې ګوند موسس انجنير غلام محمد فرهاد دی. دغه ګوند دافغان ملت په نوم يوه جريده هم خپروله چې تر اوسه پورې خپرېږي. دافغان ملت جريدې لومړی مسئول مدير دغلام محمد فرهاد ميرني ورور قدرت الله حداد و.

د افغان ملت ګوند موخه په افغانستان کې دداسې بېروکراسي قيام دی چې په هر اړخيزه توګه د لوېديځ دلبراليزم او ازادي په اصولو ولاړ وي او هم دملت دودونه پکې انځور کړای شي. دويم مقصد يې دلوی افغانستان جوړول دي. پداسې ډول چې له روس څخه پنجده، مروه، له ايران څخه دخراسان ولايت او له پاکستان څخه تراټك پورې ازاد کړای شي، څکه چې ددوی په اند دغه ګردي سيمې داحمد شاه ابدالي دجوړ کړي افغانستان ونډې دي چې غصب کړای شوي دي. لکه چې په ۱۹۶۹ دجنوري په دريمه دافغان ملت په جريده کې يې له روس څخه غوښتنه کړې وه چې پنجده سيمه بېرته افغانستان ته اوسپاري چې په ۱۸۸۵م کال کی يې پرافغانستان ديرغل په نتيجه کې غصب کړې وه.

دافغان ملت دریېم هدف دافغانستان دولس ملي وحدت دی.
دغه ګوند لومړی ملت او بیا اسلام غواړي او زیار باسي چې
خپل ناسیو نالیزم ته شرعي اسلامي صبغه ورکړي. دغه ګوند
دافغانستان پښتنو ته پرنورو په نسبي ډول ترجیح ورکوي. د
افغان ملت ګوند په اوس وخت کې له ۱۳۵۷ څخه وروسته پر
مختلفو فراکسیونونو وېشلی شوي دي او هر فراکسیون ځان
دپاپا دنظریاتو انځور ګر او هغه نور منحرفین ګڼي او دغه
فراکسیونونه په پاکستان، هند او المان کې فعالیت کوي
دافغان ملت ګوند دافغانستان په روڼ اندیو اولوستلیو نارینه
او ښځو کې پلویان غړي لري مګر ډېر لږ دي.

**ملت ګوند:** دغه ګوند په ۱۳۵۰کال کی له ۱۹۸۱م
سره سم له افغان ملت څخه منشعب شو او موسس یې فدا
محمد فدایي دی. دهمدغه کال دوړي په میاشت کې یې له
۱۹۹۱ دستامبر له ۲۶ نیتی سره سم دملت په نوم جریده
هم خپره کړه. او دغه ګوند چین پلوه کمونست ګوند دی.

**مساوات:** دمساوات رسمي نوم:دیموکرات مترقي ګوند
دی. دمساوات ګوند بنسټ کیښودونکی محمد هاشم
میوند وال دی چی نوموړی خپل دغه ګوند په ۱۳۴۷ کې
له ۱۹۶۶م سره سم جوړ او اعلان کړ او په دغه مهال کې
نوموړی دافغانستان لومړی وزیر و، میوندوال دخپل ګوند

خپرونکی اورګان مساوات په همدغه کال دجون په میاشت کې خپور کړ چې په لومړۍ ګڼه کې یې دخپل ګوند پالیسي پکې بیان کړې وه او دګوند اهداف یې پکې توضیح کړي وو. دمساوات ګوند یو مهم غړي دهېواد نامتو او پیاوړي لیکوال عبدالروف بینوا و چې بیا وروسته دروسي کمونستانو په حکومت کې شامل شو.
محمد هاشم میوند وال په ۱۳۵۲ ش کال دوړي په ۳۱ نېټه د ۱۹۷۳م دستامبر له ۲۲ نېټې سره سم دکودتا په تور دخپل ګوند دلس ګونو غړو په ګډون بندي کړای شو او دهمدغه کال دتلي دمیاشتې په نهمه نېټه پرچمیانو په بندیخانه کې وواژه او بیا یې په راډیو کې اعلان وکړ چې میوندوال په بندیخانه کې پخپله ځان وژلی دی. دګوند غړی یې اوس هم فعالیت کوي او په پېښور کې دشین انقلاب په نوم اخبار یعنې جریده هم خپروي.
**اتحاد ملي ګوند**: دغه ګوند په ۱۳۴۸ ش له ۱۹۶۹ سره سم په کابل کې جوړ او اعلان کړای شو او موسس یې محمد اسحاق عثمان و، ډاکټر امان الله رسول، حبیب الله فاروقي او دشاهي کورنۍ سردار ان یې غړي وو. دغه ګوند د ۱۳۴۸ کال دزمري په میاشت کې د ۱۹۶۹ کال دجولایی له ۳۰ مې سره سم داتحاد ملي په نوم جریده هم خپره کړه

# ملاتړ

**دادیبانو ملاتړ**: په اروپا کې دلبرالېزم دترویج په تکل دپاریس دښځو له برېنډ او عریان لاریون سره سره، دفرانسې، المان او په خپله دانګلستان ازادي خوښوونکو ادیبانو او لیکوالانو هم په زړه پورې ونډه اخیستې وه او بیا په خاصه توګه په اجتماعي ډګر کې. یعنې دښځو په ازادي کې اوپه دوی پورې اړوندو مسایلو په باره کې لکه نکاح، طلاق، ولادت او داسې نور. په دې هکله یې ځانګړی مضامین، افسانې او ناولونه ولیکل او خپاره یې کړل چې دبېلګې په توګه یې دیو څو کسانو یا دونه ضروري ګڼم:

۱ـ دفرانسې دهغه وخت نامتو لبرالي لیکوالي او ادیبې لیډیز ژورسان چې پخپله خورا بد لمنه او بې حیاء ښځه وه په خپل ناول "ژاك" کې دښځو دنکاح په باره کې داسې لیکلي و:

زما په اند نکاح دازدواج په ګردو طریقو کې خورا زیاته ناوړه طریقه ده، او زه باور لرم چې دلبرالیزم په ترویج سره به دغه طریقه په بشریت کې بنده کړای شي او پای ته به ورسولی شي[۱]

۲ـ داجتماعي لبرالیزم یو بل فرانسوي مصنف Bwladon بول اډن په خپله مبتذله او لبرالي لیکنه کې ځوانانو ته په خطاب کې داسې ویلي دي:

---

[1] پرده ص 55 دمولنا مودودي(رح) تغنیف.

چې مسئول مدیر یې ښاغلی عبدالحکیم مژده و. له دې امله چې دغه ګوند دشاهي کورنۍ دلبرالانو او دیموکراتانو ګوند و، په ټولنه او ځوانانو کی ونه منلی شو.

**وحدت ملي ګوند**: دغه ګوند په ۱۳۴۲ کې له ۱۹۶۳م سره سم جوړ کړای شو موسس یې استاذ خلیل الله خلیلي و. دغه ګوند دحزب زرنګار او حزب شاه په نومونو هم نومولی شوی دی. دغه تنظیم دوحدت په نوم جریده هم لرله چې مولوي خال محمدخسته یې مسئول مدیر و. ددغه ګوند مشهور مخکښان عبدالحمید مبارز چې دکارمل دپرچم ګوند غړی هم و، ګل احمد فرید چې له حفیظ الله امین سره یې نیږدې اړیکې لرلې ښودلی شوي دي. عبدالحمید مبارز دحامد کرزي په حکومت کې داطلاعات او کلتور دوزارت معین ټاکلی شوی دی او اوس په ۱۳۸۱ کې له ۲۰۰۲ سره سم دحکومت فعال غړي دي.

مطلب دا چې لبرال او دیموکرات پاچا محمد ظاهر خان دلبرالیزم دغه لومړی اصل یعنې فکري ازادي په افغانستان کې داسې عملي کړه چې که څوك کمونست کیږي که سیکولر کیږي او که ناسیو نالست کیږي هر چاته عمومي ازادي ده پر هیڅ فکر بندیز نشته.

# دبیان ازادي

دافغانستان دیموکرات او لبرال پاچا ښاغلی محمد ظاهر خان په اسلامي افغانسان کې دلبرالیزم دویم اصل هم په بشپړه توګه پلی کړ او هغه داسې چې هر څوك ازاد دی چې هر څه وایي او دخپل نظر څرګندونه وکړي. دبیان دازادي له اعلان څخه په ګټه اخیستلو دافغانستان ځان پلورلیوکمونستانو، غرب ځپلو سیکولریستانو او عیاشو، پر اسلام او اسلامي شعایرو انتقادونه کول او ملنډې وهل پرې پیل کړل. ددین پالو او په اسلام مینو رجالو سپکاوی کول، په ښوونځیو او مکاتبو کې ډرامې پسې جوړول، دهېواد په ورځپاڼو، په ګوندي جرایدو او مجلو کې داسلام په خلاف مضامین لیکل، په رسمي غونډو او سیمینارو نو او ګوندي جلساتو او سیمپوزیموتو کې اسلام ته توره ارتجاع او مسلمان ته مرتجع ویل اسلامي تمدن، اسلامي ثقافت او اسلامي تهذیب ته دمنځنیو پېړیو بقایا ویل او په ډاګه سره اسلامي عبادات دخرافاتو مجموعه ګڼل. داجنبي کفري او دهري نظریاتو او تهذیبونو توصیف او په تقریرونو او خپرونو کې دهغوی ستاینه کول او دافغانستان د مسلمان ملت نوی نسل ورته دعوت کول، په

کمونیستي او دولتي جرایدو، ورځپاڼو او مجلو کې دقران کریم او خاتم النبیین محمد صلی الله علیه وسلم سپکاوی دظاهر خان دحکومت دبیان ازادي وه. او دازه نه خو مبالغه کوم او نه تورلګوم بلکې داهر څه په ازادانه توګه ویل کېدل چې بېلګې یې په لاندې ډول دي:

**الف:** د ۱۳۴۹ دغوایي دمیاشتې په ۲ د ۱۹۷۰ داپریل په ۲۲ مه دلینن د مړینی دکال نمانځنې په مناسبت په دولسو مخونو کې دپرچم جریده خپرول او په هغې کې پرلېنن درود ویل. او په هغې کې اسلام ته ارتجاعي دین ویل او په افغانستان کې داسلام پرځای دکمونیزم دحاکمیت غوښتنه پداسې حال کې چې دپرچم دجریدې په سلوکې دېرش لګښتونه دمحمد ظاهر خان حکومت ورکول.

**ب:** د ۱۳۴۹ کال دلړم په میاشت کې له ۱۹۷۰ دنوامبر په میاشت کې دظاهر خان دحکومت په رسمي او دولتي ورځپاڼه اصلاح کې دخاتم النبیین محمد صلی الله علیه وسلم د "مردنه زنه" په نوم توهین امیز خیالي کاریکا تور خپرول. په دغه موده کې دنور احمداعتمادي حکومت و، داطلاعاتو او کلتور وزیر محمود حبیبی و، داصلاح ورځپاڼې مسئول مدیر سید فقیر علوي و او دغه

کاریکاتور له یو الماني څخه اخیستل شوی و او داطلاعات او کلتور مامور سراج وهاج ترجمه کړی و او سید فقیر علوي دحبیبي محمود په مشوره خپور کړی و او دغو درهوارو ته یهودیانو سل زره ډالر د دغه کاریکاتور دخپرولو بیه او مکافات ورکړی و او کله چې ولسي جرگې ددغو دري وارو دلري کولو غوښتنه وکړه نور احمد اعتمادي يې له انفکاك څخه انکار وکړ.

ج: کله چې په ۱۳۵۰ش کال کې له ۱۹۷۱م دجولایی له ۲۶ سره سم ډاکټر عبدالظاهر دلومړي وزیر په توگه له ولسي جرگې څخه داعتماد رایه تر لاسه کوله نوله دې امله چې نوموړی په خپله کابینه کې ښاغلی ډاکټر عبدالصمد حامد دصدر اعظم دمرستیال په توگه، محمد موسی شفیق دبهر نیو چارو دوزیر په توگه او محمد ابراهیم عباسي داطلاعاتو او کلتور وزیر په توگه معرفي کړی وو او دغه دري واړه دکمونیزم خلاف وو نوکامریډ ببرك کارمل په جرگه کې دراپې ورکولو په تقریر کې دغبرگون په توگه هغوی او ډاکټر عبدالظاهر ته په خطاب کې داسې وویل:
ارتجاع راست وشعله افروزان چپ افراطي عملاً درزیر لوایي انتی سویتیزم "ضدر روسي" دریك جبهه باجناح راست محافل حاکم وسازمان های جاسوسی داخلی

وخارجی در تفتین وتوطئه اند تاروابط نیك وحسن همجواری افغانستان واتحاد شوروی رابسود ارتجاع برهم زنند"[1]

دکارمل داسلام دمقدس دین په خلاف دغه وینا هغه هم دافغانستان دمسلمان ملت دولسي جرګې په انګړ کې دښاغلي محمد ظاهر خان دبیان دازادی جوته بېلګه ده چې دی څومره لبرالیزم ته ګروهمن و چې په اسلام یې هم ترجیح ورکوله څو جرمي بنتهام انګلیسي خپه نه شي او الله که خفه کېږي خیر دی. محمد ظاهر خان ته بې تفاوته دی.

د: د ۱۳۵۱ کال دچنګابښ دمیاشتې په لومړۍ لسیزه کې شعله یانو په خپله یوه غونډه کې په کابل پوهنتون کې په تقریرونو کې په ډاګه دانبیاء علیهم السلام دعصمت په خلاف ګستاخانه ویناوې وکړې او هم یې دقران کریم څونسخې مبارکې دپلتخنیك له څلورم پوړ څخه غورځولې وې. چې بیا دپوهنتون مسلمانو محصلینو دغبرګون په توګه دکابل پوهنتون دحقوقو دپوهنځۍ دتعمیر په مخه کې غونډه وکړه او په غونډه کې له اسلام او اسلامي مقدساتو څخه په دفاع کې اود کمونیزم او سیکولریزم په خلاف ویناوې وکړې چې شعله یانو ونه زغملی شوې او پر

---

[1] مجله ولسی جرگه متن سخنرانی وکلا، هنگام رای دهی داکتر عبدالظاهر سال ۱۳۵۰ هش

مسلمانانو يې يرغل وکړ او ددواړو تر منځ نښته وشوه چې په نتيجه کې يې سيدال شعله يي پر سر ولګېده او په روغتون کې مړ شو. محمد ظاهر خان ددغې پېښې پړه پر مسلمانو محصلينو واچوله او درې مخکښه مشران مقررين انجينر حبيب الرحمن دپولې تخنيك محصل، ډاکټر محمد عمر دطب محصل او انجنير حکمتيار دانجينري محصل يې ورڅخه بنديان کړل، خوهغوی چې پر اسلام يې هېڅ بې هيڅه تعارض کړی و ازاد پرېښودل ځکه چې دېموکراسي او دبيان ازادي وه هغه هم داسلام په خلاف.

# (اجتماعي ازادي)

دلبراليزم درېيم اصل اجتماعي ازادي ده چې دافغانستان ديموکرات او لبرال پاچا محمد ظاهر خان دخپل حکومت په وروستيو دوولسو کلونو کې په بشپړه توګه پلي کړی وه او دلوېديځ دمنحط تهذيب په تقليد سره يې دافغانستان ديونيم زر کلن اسلامي اجتماع سنن او روايات تالاترغه کړل، په ټولنه کې دفحشاوو او بې حيايي خپرولو ګرد وسايل لکه مطبوعات، راډيو، غير ضروري تجملي اشياء، تياترونه، کلبونه، او سينماوې دحکومت په سر پرستي

ترویج کړای شوي، دنجونو او هلکانو ګډ Festivas فستیوالونه او په هغو کې ګډ ډانسونه او نڅاوې کول دافغاني ټولنې دتباهي او بې حیایي ستر عوامل وو.
ازدواجي شرعي او افغاني طریقه په پارکونو، چمنونو او کلبونو کې په Free Love فري لو او Love marrage بدل شول، دخلکو په وړاندې هلك پر نجلۍ او نجلۍ پر هلك لاسونه اچولي وي، پېغلې نجونه په شپو شپو دزده کړې په پلمه له کور څخه وتلي او له خوښ کړي ځوان سره مزې چړچې کول او بیا دحکومت له پلوه هغوی ته د Birth control داولاد نه زېږولو ددرملوتهیه کول دښاغلي محمد ظاهر خان داجتماعي لیبر الیزم ثبوت دی چې ښه څرګنده بېلګه یې دنغمه او منګل لومیرج دی.
دښځو دازادي او Women rights په نومونو ښځې بازارونو، هوټلونو، دفترونو ته له کورو نو څخه بهر کول پداسې حال کې چې په جاهلي زینت او سینګار سمبالې، بربنډ سرونه او مخونه نیمه عریاني وي او دنارینه و دمشغولا او دمحفل شمع دتجارت لاڅکې وي، دهغوی دمور، خور، لور او مېرمن په نوم عفت او عصمت له پښو لاندې کول دشاه داجتماعي Liberalism انځور دی.
دغرب له اسلام دښمنه پلان سره سم په ظاهر شاهي نظام کې له کور څخه دښځو په بهر کولو سره دکورنۍ نظام

ختمول، داولاد له روزنې، دمېره له شرعي حقوقو او دکور له چارو څخه دازادي په نوم بغاوت کولو ته وهڅولی شوې.
په دفترونو، تعليمي مراکزو، کارخانو، سرکاري او شخصي هوټلونو کې دمراجعينو په خدمت کولو لګيا کړای شوي، پداسې حال کې چې ميک اپ به يې کړی و او سپين ورالونه به يې ورته اغوستلي و هغه هم سپينې پوندۍ او متې بربندې کړي لنډې مونو ژوپ کميسونه به يې اغوستلي وو داو د ظاهر شاهي نظام داجتماعي Liberalism حقيقت او ماهيت.

# اقتصادي ازادي

د Liberalism څلــورم بنســـټيز اصـــل Economic Liberalism دی چې معنـا او مطلـب يـې دادی: فـرد بـايد ازاد پرېښودلی شي له هرې لارې او وسيلې څخه چې دولت ګټلی شي بـايد ويـې ګټي. دلبرالـيزم دفلسـفې بنسـټ کېښودونکی جرمي بنتهام دغه اقتصـادي اصـل دغربـي اقتصادي نظام دهغوی په اصطلاح لـه پـلار Adamsmith متوفي ۱۷۹۰م انګليسي څخه اخيستلی دی . اقتصـادي ليبراليزم ته Classical Economy او په فرانسوي اصطلاح کې Laissezfaire يعنې ليسيز فر، هم ويلی کـېږي. چـې معنا يې ده: پرېږده هر څوك ازاد چې هر څه کوي چې ويـې کړي.

په ظاهر شاهي ديموکراسي کی دلبراليزم دغه اصـل هم پـه بشپړه توګه عملي شوی و، او هغـه داسې چې د Ricardo او آدم سميت لـه تيوری سره سم دګردو اقتصـاد تـر لاسـه کولـو ذرايع يې مجاز اعلان کړل چې لـه همدې امله په افغانسـتان کې دسود خوړلو او دځمکې دګروی سود دناسور او طاعون بنه غوره کړه چې په نتيجه کې يې غربت او افلاس زيات شو. په سرکاري سطح زکات، خراج او جزيه اخيستل او بيت المـال

ختم کړای شول، احتکار وده ومیندله. دهېواد وړو او لويو سوداګرو دملت په لوټ کولو لاس پورې کړ داړتياوړ اجناسو نرخ او قيمت ددوی په خوښه او رضامندي و، داسعارو حد معلوم نه و، له دوکاندار څخه نيولی تر مغازه لرونکي پورې هېوادوال په پخه چاړه ذبحه کول. قصابانو دسپيانو، پيشوګانو او خرو غوښو په پلورلو دولت ګاټه، قيمار وهل دحکومت په سر پرستي کې دلاړي په نوم عام شو. په جشنونو، ودونو، هوټلونو، دکليو او باندو په حجروکې قيمار او جواري دومره دود شوی وه چې جوار ګرو به خپلې ښځې او لوڼه هم په داوکې لګولې او داهېڅ عيب ورته نه ښکارېده.

**مخدرات:** دافغانستان په لويو او کوچنيو بازارونو کې دشرابو پلورل او پيرودل، دچرسو او بنګو کاروبار او سوداګري او کرهڼه، اپيم کرل او داپيمو کرهڼه او سوداګري خپل اوج ته رسېدلې وه، په هر دوکان کې به هر ډول مخدرات په ډاګه پلورل او پيرودل کيدل، او دهېواد او بشر دښمنانو ددې هېڅ پروا نه کوله چې دغه ځيزونه خونسلونه تباه کوي په جسمي او اخلاقي توګه زيانمن دی چې له همدې امله ددغو شيانو استعمال او ددوی کار بار او دغه پورتنی د دولت ګټلو ذرايع قطعي او منصوصي حرام دي،

هغه څوك احمق او ناپوه دی چې دمينې او عشق په خپله بتخانه کې چې په خپل زيار سره يې تعمير کړی او بيا په هغه کې ټول عمر دايکي يوبت لمانځني ته کيني. بلکې دخوند اخيستلو لپاره هره شېبه بايد دنوي مېلمه انتخاب وکړای شي.[۱]

۳_ دفرانسې دهغه وخت يو بل اديب BOBRAL WIV بيرالوئي دلبراليزم يعنې مطلقې فردي ازادي دخپرولو او کاميابي په تکل په دې اړوند په خپل ليکلي تصنيف کې ويلي دي:

"اخلاقي بنديزونه په حقيقت کې دانساني ذهن او دماغي ځواکونو په وده کې لوی خنډ دی، او تر څو پورې چې په بشپړه او هر اړخيزه توګه دغه بنديزونه پای ته ونه رسولی شي او پرې نه ښودلی شي او انسان په بشپړې ازادي سره له جسماني لذتونو څخه متمتع نه شي تر هغه پورې دانسان لپاره هېڅ ډول عقلي، عملي، مادي او سيکالوژي پرمختګ نه شي ممکن کېدلای. ځکه چې داخلاقي بنديزونو دموجوديت په صورت کې داسې کول هېڅ ممکن نه دي[۲].

---

(۱) پرده ص۵۷پرده 57.

(2) پرده ص۵۷.

که احیانا به یو چا ددې په خلاف غږ او چت کړ ورته و به ویل شو: څه بابا! بز به پای خو دگوسفند به پای خود!څه خپل کار کوه دیموکراسي نظام دی هرڅه ازاد دي.

**جسم پلورنه:** ځینې اخلاق بایللو خپل ناموسونه ددولت ګټلو ذریعه وګرځوله او ددیموکراسي په لسیزه کې یې دښځو په جسم پلورنه لاس پورې کړ او داذریعه په دوه ډوله وه: یو ډول هغه وګړي وو، چې خپلې ښځې، خوینـدې او میندې یې په ودونو، هوټلونو او حکومتي تیاتورونو کی نڅولې او رقاصي ورڅخه جوړې او دهغوی درقص په وزله یې پیسې ګټلې چې داکار به هغوی ددیموکرات حکومت په مرسته، ملاتړ او هڅو کاوه او زمونږ ننګیالي ملت لیدل چې حکومت دافغانستان په لویو ښارونو کې په لسګونو تیاترونه، کلبونه اورقاصخاني جوړې کړي وي چې تیکسونه به یې پلورل اود حکومت بودیجې ته به یې روپۍ تللی او رقاصوته به یې تنخا ورکوله.

دویم ډول هغه وو چې دزناکاري اډې یې جوړې کړې وې او په عصمت پلورنه به یې روپۍ ګټلې او د حکومت له پلوه اجازت نامې ورکړای شوې وی چې له همدې امله به یې په ازاده توګه دزناکارو بار کاوه ان تر دې چې دهلمند ولایت دچخانسوریوی طایفي ته دظاهر خان لبرال دیموکرات

حکومت دبړوه ګړ تذکرې ورکړې وې او دهغوی په تذکرو کې دکسب په خانه کې ورته لیکلی و "مرده ګاو" یعنې دزنا کارو بارکوونکی، او هغوی به دافغانستان په ګردو، ولایاتو کې په سرکاري ځمکو کې خېمې وهلې وي او وګړي به یې داجرت په مقابل کې زنا کاري ته په رڼا ورځ دعوت کول.

<u>اختلاس اورشوت:</u> دحکومت په اداري چوکاټ کې هم دلبراليزم په حکم په هره ذریعه چې وي دولت ګټل مجازو چې خور امهمې ذریعې یې بډې اخیستل او اختلاس وو، بډې اخیستل په لومړي قدم کې و، او دغه بد مرغه ذریعه په دیموکراتو دوره کې دومره عام و چې له چپړاسي او تایپست نه نیولی تر وزیر پورې او له سپاهي نه نیولی تر جنرال پورې ګرد پرې اخته وو، دهېواد شتمن ولایات، ولسوالۍ، مستو فیتونه، ګمرکات، سرحدي تانې او چوڼۍ، قضایي محکمې او علاقه دارۍ وزیرانو په ټاکلي مبلغ ورکول چې له شل زره افغانیو څخه نیولی تر لکونو پورې به کیدلی، دچا غربت په پام کې نه نیول کېده بلکې قاضي ولسوال، قومندان دسرحداتو او ګمرکاتو امرین مجبورو و چې هره میاشت دومره دولت په بډوکې تر لاسه کړي چې له ځان څخه تروزیر پورې ټاکلي سهام پوره کړي.

دسرکاري اموالو اختلاس او تـرورل هـم پـه ديموکـرات لیبرالیستی نظام کې دومره عـام شوی وو چې لـه کـوچني دفتر څخه ترګمرکاتو پورې او لـه قلمدان څخـه نیولی تـر موټرو پورې ګرد سرکاري اجناس او نقود اختلاس کولی شول. او اداري فساد دومره عـام شوی و چې ساری یې نـه لاره، ډېر خلي داسې شوي دي چې پـه سر کـاري او دولتـي شرکتونو کې بـه دومره زیاتـه مالي غـلا شـوې وه چې پـه حساب سره بـه یې ګرد وزارت لـه پوره کولـو څخـه عـاجز کېده، نو ددې لپاره چې هـم اختلاس کوونکی دبازانو پـه شان سری سترګې تبرئه وي او هم مربوطه اداري واحـد غیر مسئول وي، پلان به جوړ کړای شو او داسنادو ګردار شیف ته به اور واچولی شو او پلمه به یې دبرېښنا دتارونو شاټ و چې یوه بېلګه یې په لاندې توګه وړاندې کولی شي:
داساسي قانون او دیموکراسي پـه لسیزه کې دافغانستـان حکومت دروس د سوسیال امپریالیزم لـه کمونیستـي رژیم سره په لسګونو تعمیراتي او ساختماني قرار دادونـه دپـلان وزارت، مالیه وزارت، بهرنیو چارو وزارت او دافغانستـان دفوائدي عامي وزارتونو کړي وو چې دهغو لـه جملې څخـه یوازې دفوائـدي عامـه وزارت لـه چینـل څخـه روسـانو دافغاني اداري خائنانو په ملګرتیا دپټرولو ټانکونـه، داهـن چادر پـه لسګونو لاری، دساختماني او سپنیزه سیخانو،

دسیمتو او نورو ابزارو حیف او میل اختلاس دملیونونو افغانیو په کچ کړی و، او ددې لپاره چې دشاهي لیبرالیزم داداري فساد او خیانت دغه دملي غداري راز افشاء نه شي نو دروسانو دکاجي بي شبکې اوافغاني اختلاس کوونکو په ګډ جوړ کړی پلان سره په ۱۳۴۷ کال کی دلیندۍ په میاشت کې د ۱۹۶۸م کال ددسامبر له میاشتې سره سم د دار الامان قصر ته اورواچولی شو چې دفوائدي عامي دوزارت مرکز ګرځولی شوی و. او ددغه حریق په نتیجه کې دهغو ملیونو افغانیو دقراردادونو او حساب اسناد او مدارك وسوځولی شو چې دروسانو سره کړای شوي وو، روسانو او دهغوی ملي افغاني خائنو په دغه شوم پلان سره دملیونو نو افغانیو هغه اختلاس پټ کړ چې زمونږ دمومن ملت دیتیمانو، بې وزلانو او کونډو له اموالو څخه یې کړی و، او ددی پر ځای چې روسانو ته یې پردغه ملی خیانت احتجاج کړی وای، له هغوی سره نوی قرار دادونه وکړل او ددار الامان ملي فاجعه یې بابیزه وګڼله. او په همدغه کال کې دچنګاښ په میاشت کې دمزار دسید شاه خان دپنبې په شرکت کی هم اورواچولی شو او په سلګونو تنه پنبه او اسنادو سوځولی شو څو په دغه شرکت کې کړای شوی اختلاس پرې پټ کړای شي، وقس علي ذالك.

# استثنايي امور

د ښاغلي محمد ظاهر خان په ديموكرات سلطنت كې ځينې امور له لبراليزم څخه مستثنى كړاى شوي وو او هغه دغه لاندې امورو:

۱ ـ جبري عسكري: كه څه هم دجبري عسكري فرمان په افغانستان كې داسلام دمقدس دين له راتګ څخه وروسته دلومړي ځل لپاره دافغانستان سيكولر پاچا امير امان الله خان په ۱۳۰۷ كې په خپله نظامنامه كې جاري كړى و خو تطبيق او پلي كولو ته يې پاتې نه شو او بيا كله چې په ۱۳۰۸ ش له ۱۹۶۹ سره سم دښاغلي محمد ظاهر خان پلار پاچا شو نو دامان الله خان دغه فرمان يې عملي كړ او بيا كله چې په ۱۳۴۳ له ۱۹۶۴ سره سم ښاغلى محمد ظاهر خان ديموكراسي اعلان كړه بيا هم په افغانستان كې دجبري عسكري ظالمانه دود كما في السابق په خپل حال پاتې كړاى شو او دلبراليزم له فلسفي څخه مستثنى كړاى شو چې په حقيقت كې دافغانستان دملت دغلام ګرځولو خورا ناوړه ډول دى.

۲ ـ جبري ږيره خرييل: دامير امان الله خان دا ډيكتاتورانه او مستبدانه فرمان هم له ظاهر شاهي

لبراليزم څخه مستثنی و چې په عسکرو باندې به جبرا ږیره کلولی شوه او پدې کې ازادي نه وه چې دهر چا خوښه ده چې ږيره کلوي او که يې پرېږدي.

**۳ـ جبري دريشي كول:** دحكومت په چوكاټ كې چې هر چا او په هره اداره كې كار كاوه او رسمي دنده يې اجراء كوله دلويديځ داجتماع پر ړانده تقليد كولو سره دملي اسلامي لباس اغوستل ممنوع و او دريشي كول جبري و، او هيڅوك هم ورڅخه مستثنی نه و.

**۴ـ پر سر اولاس جبري سلام كول:** دغه راز د يهوديانو او مسيحيانو دخوشالتيا په تكل په حكومتي چمبه كې شرعي اسلامي سلام كول اود سلام الفاظ ويل ممنوع و او په جبري توګه به عسكر خپل منصبدارته او نورو دولتي مامورينو به خپلو امرينو ته دسرونو په ښكته كولو او لاسونو پر اوچتولو دتعظيم رسم كولو او دلبراليزم له اصولو سره سم په دې باره كې هيڅوك هم ازاد نه و چې په خپله خوله له اسلامي حكم او افغاني دود سره سم ددوو كسانو دمخامخ كېدو په مهال كې مامور السلام عليكم ووايي او امرېې وعليكم السلام ووايي.

د اوه دظاهرشاهي دور دلبراليزم قصه چې په لنډه توګه تقديم او بيان كړای شوه.

## دریېیم پړاو: دسردار محمد داود جمهوري دوره

په افغانستان کې دلبرالیزم دریېیم پړاو له ۱۳۵۲ کال چې له ۱۹۷۳م کال سره سم پیل شوی و او تر ۱۳۵۷ش کال له ۱۹۷۸م کال پورې یې دوام وکړ. په دغه پړاو کې په سیاسي ډګر کې هم لبرالیزم عملي کړای شو او هغه داسې چې سلطنتي نظام پر جمهوریت بدل کړای شو چې په حقیقت کې دروس پلوه افغاني کمونستانو او روسي کمونیزم له پلوه دپرولیتاري دیکتاتوري پیلامه وه.

په دغه دریېیم پړاو کې که څه هم په لبرالیزم کې په ظاهره کې کوم بدلون رانه غی او په اجتماعي ډګر کې دپخوا په څېر مطلق لبرالیزم حاکم و. مګر دسر دار محمد داود خان له ځینې اقداماتو څخه داسې جوتې ده چې که ژوند وفاور سره کړې وای ذجزري یعنې بنسټیز بدلون هوډ یې نیولی و او دلوېدیځ وحشي لبرالیزم یې په افغانستان کې له مونډ څخه یوست او هغه اقدامات یې په لاندې ډول وو:

۱ـ ملي احساس: لومړی اقدام یې داوکړ چې ددولتي تبلیغاتي منابعوله لارې یې په خلکو کې دملي او افغاني ژوندود، دژوندي کولو هاند وکړ پدې معنا چې افغاني غیرت، ننګ، حیاء، شرافت، عصمت او عفت په ملت کې احیاء کړې او دلوېدیځ طاغوتي او جاهلي تهذیب له تولنې

ځخه وباسي، اجتماعي او بیروکراتیك مفاسد له منځه یوسي، خپل دود او کلچر بېرته په ټولنه کې پلی کړي او له اجنبي دودونو سره الوداع وکړي.

**۲ـ دقوانینو نفاذ**: داود خان دویم دتعمیري بدلون اقدام داوکړ چې مدني او جزایي قوانین یې جوړ او نافذ کړل چې دغه دواړه یې په مجموع کې له حنفي فقهي ځخه اخیستل شوي دي. مدني قانون یې په څلورټوکونو کې خپور او چاپ شوی و او په مجموعي توګه دوه زره څلور سوه شپاړس (۲۴۱۶) مادې لري چې ګرده فقهه یې احتواء کړې ده، دمعاملاتو او حقوقو په اړوند دی. او دجزاء قانون یې په یو ټوك کې خپور شوی و، چې په مجموعي توګه پنځه سوه درویشت مادي لري او په **۱۳۵۵**ش کال کې بشپړ، خپور او نافذ کړای شو.

دسردار داود خان په دغه قانوني اقداماتو کمونستان او لبرالستان دواړه وارخطا تلولي او اندېښمن شول ځکه چې دقوانینو په نفاذ سره دډېرو اجتماعي، اداري اومعاملاتي فجائعو مخه ونیولی شوه. دغه راز داساسي قانون په جوړولو او نفاذ سره دروس دکمونیستي رژیم افغاني لاس پوځي او دلوېدیځ دلبرالیزم پلویان نور هم مایوس شول ځکه چې په اساسي قانون کې چې په ۱۳ فصلونو او ۱۳۶

مادو مشتمل و او د ۱۳۵۵ دسلواغي په ۲۵ تصويب شو دا ماده ليکلی شوې وه چې دافغانستان ولس مشر به هغه څوك وي او دسياسي زعامت حق هغه څوك لري چې افغان وي، مسلمان وي او په هېواد کې ميشت او اوسېدونکی وي.

**۳ـ ملي وحدت:** دربيم اقدام يې دملت ديو والي هاندو او غوښتل يې چې دافغانستان ګرد مليتونه په ايکي يوچورليځ راغونډ شي. څو دسيتميانو، قومي، سيمه ييز لساني او نژادي توپيرونه او هم دخلقيانو او پرچميانو دمارکسيزم دتيوري طبقاتي شخړې پيداکول ناکام کړي. او دخپلې دغې موخې دتر سره کولو لپاره يې په دولتي چوکاټ کې قومي، قبيلوي او سمتي القاب لکه هروی، بدخشي، کونړي، ميداني، لوګري، مزاري، ګردېزي، پرواني، غزنوی، احمدزي، ستانيزي، ايماق، سلجوقي او داسې نور ممنوع وګرځول چې داد هغه يو ښه اقدام و.

**۴ـ په ګوندونو جوړولو بنديز:** څلورم اقدام يې داوکړ چې په هېواد کې يې دسياسي ګوندونو او طبقاتي اتحاديو په جوړولو بنديز ولګاو، چې دنومورې دغه اقدام دلبراليزم پر مخ کروړلی څپيړه وه، او دملي سياسي اختلافاتو دپای ته رسولو ښه تجويزو، خو دا چې نومورې دملي غورځنګ په نوم

خپل ګوند جوړ کړ، دافغانستان مسلمانان يې اندېښمن کړل، مګر دکمونستانو روسي مقاصد و ته دخطر لوی زنګ و او دهغوی تېر پنځلس کلن فعالیتونه يې پرې متوقف کړل.

**۵ـ له اسلامي هېوادونو سره دوستانه اړیکې:** سردار داود خان له ګردوځخه مهم قدم دا اوچت کړ چې له اسلامي هېوادونو سره يې سیاسي دوستانه اړیکې پیل کړې، چې په دې لړ کې په ۱۳۵۵ کې دزمري په ۲۹ له ۱۹۷۶ داګسټ په ۱۵ پخپله محمد داود خان پاکستان ته لاړ او په ۱۳۵۶ دغوايي په ۵ مه د ۱۹۷۷ داپرېل په ۲۵ مه سردار محمد نعیم خان ایران ته لاړ او بیا په ۱۳۵۷ کې دوري "حمل" په ۱۳ مه د ۱۹۷۸م داپریل په ۲ مه، مصر، کویټ او سعودي عربستان ته سفر وکړ، عمره يې اداء کړه او حرمینو ته يې له ځان سره غالۍ وړې وې، او دشاهي کورنۍ دالومړی کس و چې عمره يې اداء کړه او محمد ظاهر خان تر اوسه پورې دحج او عمرې له سعادت څخه محروم دی.

په هر صورت که محمد داود روسانو وژلی نه وای ښايي چې له افغانستان څخه يې دلبرالیزم په ګډون دهر ډول ایزم لمن ټوله کړې وای خو دریغه چې نوموړی په خپل دغه سفر کې له ځان سره محمد خان جلالر بوولی نه وای ځکه چې هغه دکاجي بې جاسوس واوشیبه په شبه يې دده دسفر له

د فیلسوفانو ملاتړ: دجرجي بنتهام دلبرالیزم مفکورې اویون ته دلوېدیځ ځینې ملحدو فلاسفه و او ساینس پوهانو هم وده ورکړه او ددغې بشر دښمنه شیطاني اندود او تحریك ملاتړ یې وکړ او بیا په خاصه توګه یهودي فیلسوفانو په ځغرده سره نه یوازې داچې ملاتړیې وکړ بلکې دخپلو فلسفي نظریاتو ملاك او چورلیځ یې لبرالیزم وګرځاوه. چې دادی دهغوی له جملې څخه دیو څو کسانو لبرالیستي اقوال دبېلګې په توګه دلته بیان او وړاندې کوم:

۱ـ کارل مارکس یهودی: KARL MARX 1818-1883

دجرمنې له یهودیانو څخه دی او په اقتصادي ډګر کې دسوسیالیستي لیبرالیزم له مخکښانو څخه و. نوموړی ویلي دي: دین دملتونو افیون دی چې د کپیټالیزم له پاره په زړه پورې خدمت کوي مزدوره پاټکی. دبروژوایانو دمظالمو دسهلو له پاره دجنت په واهی ژمنو غولوي. اخلاقي اصول په خپل ذات کې هېڅ ارزښت نه لري او هغه څه چې اصل او حقیقت دی مادیت او اقتصاد دی.

په اقتصادي ډګر کې دپرمختګ له پاره له دین او اخلاقو څخه ازادي ضروري ده ځکه تر څو چې دغه دواړه خنډونه وي اقتصادي پرمختګ ممکن نه دی[1]

---

(1) History of European Philosophy by be Retrand Russell. (Page 816)

اسراز و څخه کرملین ته خبر ورکاوه او کاجي بې د داود خان دختمولو پرېکړه وکړه هماغه و چې د ۱۳۵۷ کال دغوايي په شپږمه نېټه يې کودتا پرې وکړه او قتل يې کړ.

## څلورم پړاو: په کمونيستي دور کې:

په افغانستان کې دلبراليزم څلور پړاو له ۱۳۵۷ دغوايي له ۷ مې څخه د ۱۹۷۸م داپريل له ۲۷ سره سم پيل او د ۱۳۷۱ش،هـ کال دغوايي دمياشتې په ۸ مه د۱۹۹۲م کال داپرېل له ۲۸ نېټې سره سم پای ته ورسولی شو چې ديار لس کلونه عمر يې لاره او طولاني موده يې خپله کړې وه.

په دغه دور کې په افغانستان کې دلبراليزم ډول بدل کړای شو يعنې د Conservatism liberalism کنسرواټيزم لبراليزم پرځای Social Liberalism سوسيال لبراليزم پلي کړای شو، او دافغانستان روسي پلوه کمونستانو دسوسيال لبراليزم په پلي کولو سره له هر ډول ديني معتقداتو او شعايرو څخه دازادي اعلان وکړ. خلقيانو او پرچميانو له دين څخه دلبراليزم (ازادي) او The ophobia يعنې له دين څخه بيزار تياموضوع دهر چا په خوښه پرې نه ښوده بلکې هغوی زمونږ مومن ملت ته هم دکمونيزم، دهريت الحاد Dialectical materialism ډياليکټيکل ماټرياليزم يعنې جدلی ماديت ته بلنه ورکوله، او

دهیوادګرد دولتي خپرونې، راډيو او ټلويزيون يې همدې ته وقف کړی وو.
دافغانستان دکمونستانو لبراليزم يعنې له دين څخه ازادي او بې زار تيا ديکتاتورانه بڼه غوره کړه په جبر او زور سره يې خلك خپل مسلك سوسيال لبراليزم منلو ته مجبورول. دمزدك اولايی کرګس له تيوري سره سم يې Sexual libertinism يعنې جنسي اباحيت پلی کړ، دهر يو کمونست بـه چې هره ښځه خوښه شوه که به يې خوروه که به يې موروه که به يې لور وه او که بل څوك جنسي تسکين به يې ورڅخه کاوه، وزارتخانې، عام دفاتر او هوټلونـه دفحشـاء مرکزونـه ګرځولـي شـوي وو شـراب، افيـم، کوکيـن، هـيرويين او نـور ګرد مخـدرات ازادانـه اسـتعمالول. ازادانه تر ويج شول، په عوامو کې ددين پالو علماوو او روڼ انديوبدنامول، دالله اکبر دکفر ځپونکی شعار پرځای دهورا شعار دود کول او پرخلکو باندې سوسيال لبراليزم دبر چې په زور تحميلول دکمونستانو موخه وه! مګر زمونږ پردين، الله او اسلام مين ملت دهغوی په خلاف پاڅون وکړ او دهغوی سوسيال لبراليزم يې ورته دړې وړې کړ او دخپل روسي بادار دسل زريز يرغلګر شو کمار وحشي فوځ له ملاتړ سره سره يې ددیار لسوکلونو په اوږده موده کې ونه کړای شو چې زمونږ حماسي جوړوونکی مومن ملت دسوسيال لبراليزم او د Camonism بشر دښمنی تيوری ګروهمن وګرځوي.

# پنځم پړاو: موجوده دور

## په المان کې چوړ کړی شوی امریکايي رژيم

په افغانستان کې د Liberalism دغه پنځم يعنې اوسنی پړاو هغه مهال پيل شو کله چې دالمان په بون کې دافغانستان لنډ مهاله حکومت د ۱۳۸۰ کال دلیندۍ په ۱۵ د ۲۰۰۱م کال ددسامبر له اومې نېټې سره سم او په کابل کې دهمدغه کال دمرغومي په لومړۍ نېټه په کار بریدوکړ. او بيا يوه مياشت وروسته دسلواغي په مياشت کې دامريکا واکمن واکربش فرمان ورته صادر کړ چې "په افغانستان کې دې دمذهب ازادي او Women Rights او Human Rights پلي کړای شي.

هماغه و چې دافغانستان دلنډمهاله حکومت چارواکو دبش فرمان پر سر سترګو قبول کړ. بش او ټوني بلییر دمرستې لپاره هغه افغانان هم ورته راولېږل چې اروپايي او

امریکا تابعیت لري څو له دوی سره لـه افغـاني ټولنې څخه داروپـا او امریکـا د Ultra modern society یعنـــې الټراماډرن سوسایټي په شان ټولنه جوړه کړي او پـه حقیقي معنا کې لبرالیزم تحقق وموميږ. دلبرالیزم پـه عملي کولو لاس پورې کړای شو. خو په افغـانستان کې دلبرالیزم اوسني پړاو لـه تېرو پړاوونـو سره یـو امتیـازي تـوپیر لـري او هغـه داچې دلنډ مهالـه حکومت او هـم دمنځ مهالـه حکومت پـه اداري پرسونل کې دلبـاس پـه اغوسـتلو کـې هـم لبرالیزم پـه سترګو لیدلی کېږي چې ښایي دمجبوریت لـه املـه وي او هغه داسې چې ددولت له رئیس څخه نیولی تروالي او مدیر پـورې هـر چـا دخپلـې خـوښې لبـاس اغوسـتلی دی چـې دادلبرالیزم دپلي کولو ښکاره انځور ګردی.

دبېلګې پـه تـوګه دافغـانسـتان ولـس مشـر ښاغلـی حـامد کرزی صیب ملي لباس او د پوست خولی پرسوکوي. محمد قسیم فـهیم صیب ددفـاع وزیـر پکـول پرسرکوي او پرغـاړه رومال هم تاووي. محمد یونس قانوني صیب، اشرف غني احمد زی صیب، انـوار الحق احـدي صیـب او ځینـې نـور وزیـران مـاډرن دریشـي اغونـدي سرې سـرې پلنـې صلیبـي ډولـه نیکتـایي پرغـاړو او لـوڅ سرګرځېږي، ګل اغاشېرزی صیب دکندهار والي کله پګړۍ پـر سرکوي او کلـه دریشـي کوي. او دهرات والي اسمعیل خان صیب رومال پرسر کوي.

یعنې، داماني او ظاهر شاهي دورونو دلبرالیزم په شان د حکومت کار کوونکو له پاره دپتلون اغوستل او کوناټي ښکاره کول ضروري نه دي ګڼل شوي.
مګر یو شی ډېر ضروري دی چې هغه دړېرې برش کول او لنډول دي او په دې کې ټول سره متفق دي. بلکې عام وګړي یې هم له وېرې څخه برش کوي څو دالقاعده ګوند دغړی او یا دطالب ګومان پرې ونه کړای شي چې بیا به یې ګوانتاناماته بوځي.

## ایډیالوژیکي لبرالیزم:

دافغانستان په اوسني حکومت کې عقیدوي لبرالیزم هم بشپړ عملي دی، او هغه داسې چې له ولس مشر څخه نیولې تروزیرانو اورئیسانو، او د ریاست ترمرستیالانو پورې دهرې ګروهې توکونه وربکې دي. بنسټ پال مسلمان، اعتدال پسند مسلمان، Nominalist, nationalist, Secolar, Camoniset Aristocrat, demo crat اوداسې نور ګرد پکې شته ان تر دې چې دطالبانو ملاخاکسار اخوند هم وربکې دی چې دا په خپله دلبرالیزم په حکم اریانوونکی امتزاج دی. داسې امتزاج چې نه خود واکر بش په ګورنمنټ کې شته، نه دټوني بلیر او نه هم دژان شېراك پداسې حال کې چې Conservat Liberalism یعنې کنسرواټ لبرالیزم له

همدوی څخه دافغانستان په ګډون ګردی بشري نړۍ ته خپور شوی دی.
خوسره داضدادو له دغه ناشنا جمع کولو سره بیا هم دکرزي صیب دمنځ مهالي حکومتي Institutions انستیتیوشن یعني اداري نظم حاکم ښکاري، غونډۍ او مجلسونه سره کوي، ګډ خوراك سره کوي او یو له بل سره پداسې حال کې روغبړ کوي چې دطرفینو پر شونډو مو سکا نخیږي، څو داثابته کړي چې یو له بل سره دلبرالیزم په حکم په کړي کمپرومایز خوښ او راضي دی. خو دزړونو مالك الله دی، او دسایکالوژي یعني اروا پېژندني اوعلم القیافه په ښنانو سره یو دبل پرتندي اوسیلوی ښه سره پوهېږي.
*بیروکراتیك لبرالیزم:* په افغانستان کې دلبرالیسم اوسنی پړاو خورا وسیع دی ان تر دې چې په منځ مهالي اوسني اداري سیستم کې هم د Bureaucraaatik liberalism په روحیه سره کارکولی شي، او هغه داسې چې داوسني اداري عمومي مدیر دخپل کنټرول او قاطعیت هغه صلاحیت له لاسه ورکړی دی چې ماکس وبر او فایول دمدیر لپاره لازم ګڼلی دی چې له همدې امله اوس هم دښاغلي حامد کرزي صیب له زیات لبرال توب څخه افغانستان په اوس وخت کې دحکومت له Centralism سنترالیزم سیستم

څخه محروم دی او شبیه په Provincialism پرونسیالیزم سیستم پورې دی بلکې که A Narhism انارشیزم ورته وویل شي بې ځایه به نه وي ځکه چې ددولت رئیس شته خو فرمانونه یې ځینې وزیران او هم والیان نه مني. دبېلګې په توګه کرزي صیب فرمان صادر کړ چې دافغان پوهنتون دې خوست ته ولېږدولی شي. خو دلوړو زده کړو وزیر دولس مشر دافرمان قبول نه کړ. دغه راز دلویې جرګې په جریان کې ګونګوسې کېدل چې ښایي په منځ مهاله حکومت کې دافغانستان ددفاع وزارت مسلکي او په عسکري چارو پوه سړي ته ورکړای شي خو ښاغلی فهیم صیب دجرګې په انګړ کې اعلان ورته وکړ چې دچاپلار به هم له ما څخه ددفاع وزارت ونه تروړي. او که داسې څه وکړای شول دشورى تالار او دیوالو نه به په وینو رنګ کړم.

دغه راز دوالیانو هم همدغه حالت دی دکندهار والي دکرزي صیب له امر او هدایت څخه پرته ډیپلوماتیك فعالیتونه کوي او دسیمې له نورو والیانو سره اتحادیه جوړوي. دهرات والي اسمعیل خان صیب ته یې دسانټرالیزم په تکل وزارت ورکړ څو ګرد هېواد له یو مرکزي کرووړلی حکومت څخه اداره کړای شي مګر هغه ونه منله او په ځواب کې یې ورته وویل: زه دلته خوښ یم او دهرات امیر یم او ورکړای شوی وزارت ته یې خپل ځوی

ورته راولېږه. پاچا خان ځنډراڼ خو ښخي دکرزي صيب حکومت منلوته تيار نه دی. خو له دې هر څه سره سره کرزی صيب له غبر ګون ښودلو څخه ډډه کوي چې بيروکراتيك لبراليزم يې داغدار نه شي. دکرزي صيب دغه زغم ته دده ولي نعمت واکر بش هم اريان دی، ځکه چې که چېرې له هغه سره داسې وکړای شي بيا نو دلبراليزم پرځای Fassiste فاشيستی بڼه غوره کوي او متمر دين پر خپل Dictatore ديکتاتوري تبرڅپك څپك کوي، مګر کرزی صيب مومن دی، زړه سواند دی او لبرال دی. له وينې تويولو څخه کرکه کوي چې افرين دی پرې باندې وي ښايي دملت او سنی بابا يې پرشا ټپوي چې خيردی زغم کوه، هر څه به سم شي.

**سياسي لبراليزم:** په افغانستان کې دلبراليزم دغورځنګ په پنځم اوسني پړاو کې په سياسي ډګر کې هم بې سياله دی. او هغه داسې چې له طالبانو څخه پرته هر افغان حق لري او ازاد دی چې په افغاني سياست کې ونډه واخلي، ان تر دې چې که خلقي وي، که پرچمي، شعله يي وي که ستمي وي، نارينه وي او که ښځه وي چې څرګنده بېلګه يې ولسي جرګه ده. په اوسني ولسي جرګه کې چې دغړو شمېر يې اتلس سوو ته رسېدلی و، هر افغان پکې غړي توب لاره ان تر دې چې امريکايي افغان او دامريکا

دجمهور رئیس ځانګړي استازي زلمي خلیل زاد هم پکې غړي توب لاره، بلکې نوموړی خو داوسني دافغانستان دبیړني ولسي لویې جرګې کوربه و، چې دکمیسیون غړی هم نوموړی وړاندیز کړی او بش یې منظوري ورکړې وه.
په اوسني بیړني لویه جرګه کې دپاملرنې وړ خبره داوه چې دوه سوه شپېتو ښځو پکې غړیتوب لاره چې یوازې دافغانستان په سیاست کې نه بلکې دبشري نړۍ په سیاست کې او هم په سیاسي تاریخ کې ساری نه لري.
ځکه چې تر اوسه پورې دنړۍ په هېڅ پارلمان کې په دومره کچ دښځو غړي توب منځته راغلی نه دی، ان تر دې چې په انګلستان کې چې دلبرالیزم لومړنی مرکز دی په خپل سیاسي تاریخ کې یې دومره شمېر ښځو ته دګډون حق ورکړی نه دی.
دغه راز دفرانسې، المان، روس، چین، جاپان، امریکا او دنړۍ په نورو هېوادونو کې په یو وخت کې دوه سوه دوه شپېتو ښځو ته په مجالسو کې دبرخې اخیستو ونډه ورکړې شوې نه ده.
دغه راز په اوسنۍ بیړنۍ لویه جرګه کې دسیاسي لبرالیزم په ډګر کې یو بل تاریخي کار داو شو چې کله د ۱۳۸۱ کال دغبرګولي په ۲۴مه نېټه دافغانستان دمنځ مهالې دورې دحکومت درئیس ټاکنه کېده نو دریاست لپاره دکرزي صیب په مقابل کې دافغانستان دبدخشان ولایت

يوې لبرالې ښځې مسعوده جلال هم ځان کانديد کړی و چې له شپږ سوه قبل مسيح څخه تر اوسه پورې دجمهوري نظام په تاريخ کې دالومړی ځل دی او افغانستان هغه لومړی هېواد دی چې ښځې دجمهوري رياست لپاره ځان کانديد کړ نه په امريکا نه په فرانسه، نه په روس، نه په المان کې، نه په هند کې او نه په بل کوم جمهوري نظام کې نه په سيکولر او نه په کمونست جمهوريت کې تر اوسه پورې داسې شوی نه دی چې ښځه رئيس جمهوره وي، خو په افغانستان کې دديموکراسي او لبراليزم تر نومونو لاندې داسې وکړای شو. هغه هم داسې يوه ښځه چې وايي: "زه يوه مسلمانه ښځه يم او داسلام اساسات زما فکري خطوط تشکيلوي" پداسې حال کې چې داسلام اساسات خو قران او سنت دی او په قران کريم کې خو الله تعالی دنساء په سورت کې په ۳۴ ايت کې فرمايلي دي:

"الرجال قوامون على النساء" سړي پر ښځو حاکمان ګرځولی شوي دي. او دبقرې دسورت په ۲۲۸ ايت کې يې فرمايلي دي:

"وللرجال عليهن درجة" او دی سړيو لره پر ښځو مرتبه او چته.

او نبي صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

۲_ درکایم یهودي: Durkheim دفرانسې له یهودیانو څخ دی چې په 1912 کې تېر شوی دی. نوموړی په ټولنپوهنه کې دلبرالیزم په ترویج کې پراخه ونډه اخیستلې ده. نوموړی په خپل کتاب قواعد المنهج علم الاجتماع کې ویلي دي:

داخبره یو ثابت حقیقت دی چې دین، ازدواجي قوانین، کورنی نظام یوهم پنځیزنه دی بلکې داهر څه توهمات دي او دفرد دازادۍ په خلاف منځته راوړی شوي دي او له Totemism څخه یې پیلامه شوی ده. دغه راز اخلاق هم او اخلاقي قوانین ځانګړی اساس نه لري او انسان ته په کار دي چې په موجوده صنعتي انقلابي دور کې له دې هرڅه څخه ځان ازاد کړي.[۱]

۳_ فروید یهودي: 1856-1939- Sigmnd Freud داطریش له یهودیانو څخه دی او نوموړی په سایکالوژی یعنې اروا پوهنه کې لبرالیزم ته خدمت کړی دی او په خپلو نظریاتو کې یې ویلي دي: که چېرې نفس ته دشهوت داظهار او تسکین ازادي تر لاسه شي نو انسان ته به بشپړ ډاډ او سکون حاصل شي.[۲]

---

[1] الانسان بین المادیة والاسلام ۷۵ مصنف استاذ محمد قطب.
[2] مغربي فلسفه تعلیم کاتنقیدی مطالعه ص ۵۶ پوهاند سید محمد سلیم / ع ۲ همدغه ماخذ ۴۹ع۳ تاریخ تهذیب ج۲ص۵۷۵، جان بی کوستوفر.

وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ

هود (۱۱۳)



# په افغانستان کې

# د لبرالیزم غورځنګ

لیکوال

پوهنمل زاهدي احمدزی

ګولډ مدلست

32

وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ

هود (۱۱۳)

# په افغانستان کې دلبرالیزم غورځنګ




لیکوال:

پوهنمل زاهدي احمدزی

ګولډ مډلسټ

دزده کړې بری لیکونه:

* دشرعیاتو ماسټري
* د پښتو ادبیاتو ماسټري
* دوفاق المدارس لیسانس
* داسلامي طب لیسانس



دچاپ حقوق محفوظ دي

# کتاب پېژندنه

د کتاب نوم : په افغانستان کې دلبرالیزم غورځنګ

مصنف : پوهنمل زاهدي احمد زی (ګولډ مډلسټ)

دچاپ نېټه : ..... ۱۳۸۱ د تلي ۲۹ د ۱۴۲۳ هـ د

شعبان ۱۵م د ۲۰۰۲ داکتوبر ۲۱مه

ملومړي چاپ شمېر: ...... (۱۰۰۰) زر ټوکه

کمپوزر : نویدالله "نوید"

دیو ټوک بیه (       ) روپۍ

خپروونکی : ...... امیر کرور (رح) کتابتون

# فهرست